# دِیوانِ کاظم خان شیدا

ترتیب او تدوین

د

همیش خلیل

ادبي خدمت: قاسم بنوي

خپرونکے

دَ پښتو ادبي مرکز پاکستان سرائے نورنګ بنوں

١



# دیوانِ کاظم خان شیدا

ترتیب او تدوین

دَ

همیش خلیل

ادبي خدمت: قاسم بنوي

خورونکے

دَ پښتو ادبي مرکز (پاکستان) سرائے نورنگ "بنون"

بیعه :- دیرش روپۍ

# فہرست

# دا دیوان

دَعیسوی کال یوُ زرنهه سوه اوُ درے پنځوس زمانه ده. ماحول زبون او خلق چرته په تلو سه او چرته بوُږ نیدلے وُه. خصوصًا کوُزه پښتونخواه کښے هرڅوک او هرڅهٔ بے له نا قلارئ نا قلار وو. دَ قومی نظرئے اکثر پښتانهٔ مشران په زندانونو کښے پراتهٔ وو. بهرنئ فضا هم زندانی وه. همت وقتی طور ماتے کړے وه. دغه نا موافقو حالاتو کښے دے هغه وَخت دَحال سره موافق دا شعر چرته ترغوږ و شو ؎

په احوال ئے شه خبر عزیز دَ مصره!
په ناله دَ بیګنا هو زندان پُردے

دَدغه وَخت دَ حالاتو سره دَ دیر سمون له کبله دَ یوُ خاص اثر سره دا شعر ځما په ذهن راسے نقش شو. بلکه په کا ترے کړښه - بیا نږدے څلور کاله پس دَ ادبی ټولے پېښور، دَ لائبریرئ نه دَ کاظم خان شیدا دَ قلمی دیوان یوه نسخه په لاس راغله. ددغه نسخے دَ مطالعے په دوران کښے دَ برنی شعر پېښے یوځل بیا ماته تیر حالات را وړاندے کړل. دَ شیدا دَ کلام نه دَ رنګین او حسین تأثر په قبلولو ځما په ذهن دَ ماضی تورے وریځے خورے شوے. خو دا کوُرے کوُرے تیږے دَ اُمید بادونه بلکه دَ وریځو خورے ورے کړے او زهٔ یوځل بیا دَ شیدا دَ

شفقی ګلستان په نزاکتونو او لطافتونو کښې محوه شوم. او د شیدا سره د خیال پرواز په رفعتونو کښې ورک شوم. او د هغه شاعرانه عظمت ته د عقیدت نه ما سر ښکته شو.

دغه وخت سا د ځینې نورې او ادب د ژوندي ټولو او ډیرو ټولو د پاره د نا چاپو قلمي نسخو د چاپ کولو سره سره یوه اداره ورځنۍ رساله "دولان" رچه د کار د دیرښت په وجه به د دغه میاشت کښې د دوه پرچې وتلې) هم چلوله. د کاظم خان شیدا دیوان د مطالعې نه پس ځما خواهش دا وو چه دا دیوان دې د ټولو وړاندې چاپ شي. خو څو ورځې پس خبر شوم چه دا دیوان د ښاغلي عبدالرؤف بېنوا د ترتیب او تدوین نه پس پښتو ټولنې کابل چاپ کړے دے. ځما دغه ادبي مهم هم د رومبي اُصول هغه وخت هسکه چه د ناچاپ ادب خور د ونه وه. نو ځکه د دیوان کاظم خان شیدا د چاپ کولو اراده ما یوې بلې موقع ته او ځنډوله.

څه موده وړاندې د خلیق صاحب د خبرو اترو د دوران کښې د دیوان کاظم خان شیدا د چاپ کولو خواهش اوکړو. ځما اوده جذبه بیا راولړزیده. خلیق صاحب د ترتیب او تدوین ذمه واري ځما په غاړه کړه او د چاپ کولو ذمه واري ئې په خپل سر واخسته. دا موجوده دیوان د کابل چاپ نسخې او "ادبي ټولنې" د لائبریرۍ د قلمي نسخې د کلماتو عکس دے. د کابل چاپ نسخه اګرکه ډیره نیکمرغیا لري خو دا نیمګړتیا ما د پورته ذکر شوې نسخې نه پوره کړه.

د دوست محمد خان کامل مومند احسان مند یم چه د کابل چاپ نسخه ئې د ضرورت تر وخته د را بخښلو نه علاوه ئې د کاظم خان شیدا په دیباچه کښې مفیدې مشورې هم راکړې.

په آخر کښې د خپل شاګرد ښاغلي جهانګیر خان شکریه ادا کوم. چه د پروف

کتلو ناکام نے راسره اوکړو۔

## یادداشت

دَ دیوان دَ نص نه یو غزل اَؤ یوه رباعي کاتب نه دَ کتابت په وَخت سهوًا پاتے شوي وو۔ چه دَ ضمیمے په شکل په ص۲۶۲ اولیکلے شول۔

م۔خ



# کاظم خان شیدا

## اؤ

# دَهغهٔ فن

دَ خټک قبیلې دَ جدّ لقمانؒ په دولسمٔ پشت کښې یو سړے دَ کوهاټ دَ ټیرئ تحصیل دَ کر بوغه کلی نه دَ خپلو مشرانو سره دَ زړهٔ بداوی په وجه راپورته شو اؤ دَ سونالے په غرونو کښې دَ بے سروسامانئ په حالت کښې میشته شو. دا ملک اکوړے وو. ملک اکوړے یا ملک اکوتری ختک وو. خپل نصیب په دغه علاقه ډیر زر مشهور کړو دَ هجری کال یولس کم یو زر کلونه تیر شوی وو. دا هغه زمانه وه چه اکبر باچا دَ مرزا حکیم په تعاقب کښې دَ اباسین اؤ نیلاب تر غرونو رارسید لے وو. دَ سرکاری لارے دَ حفاظت په حقله دَ پښتنو ملکانو سره دَ صلاح مشورے نه پس باچا ته معلومه شوه چه دغه وخت دد غه کار دَ پاره هم ملک اکوړے یو دا سے سړے دے. چه دغه فرض به په ښهٔ شان سره تر سره کړی. چنانچه باچا دَ هغهٔ ملاقات اوکړه اؤ ملک اکوړی نے دَ خدمت گذارئ لوظ اوکړو. دَ خیرآباد نه تر نوښهره علاقه دَ ملک اکوړی جاگیر شو. دَ محصول دَ وصولئ اختیار اؤ دَ باچاهی لارے دَ ژغورنے ذمه واری ورا و سپارلے شوه. په دغه آوان کښې دَ لنډی کاسین په غاړه دَ ملک اکوړی په نوم





دَ هغه تاریخی کلی کته هم کیښنودے شوه چه نن دَ اکوړی په نوم یادیږی. هم دَ غه کلی هغه ادبی اؤ سیاسی شخصیتونه پیدا کړل چه پښتو نخوا به پرے تل ویاړ یږی.

دَ ملک اکوړی دَ مرګ نه پس دَ هغهٔ ځوئے یحیٰ خان بیا دَ هغهٔ ځوئے شهباز خان اؤ بیا دَ شهباز خان ځوئے خوشحال خان خټک وار په وار دَ مشرتابه پتکی اوتړل.

خوشحال خان خټک دَ وختی تقاضو پیش نظر یو خوا دَ ژبے اؤ ادب دَ بقا دَ پاره قلم پورته کړو اؤ بل خوا ئے قوم ته دَ ازادئ پیغام سره دَ خپل ظلم خلاف توره آخستا نیله دَ عمل ډګر ته دَ نبوړنے سره ئے پښتنو ته خپل منزل په ګوته کړو. اؤ نه صرف منزل ئے په ګوته کړو. بلکه دد غه مقدس مرام دَ عملی کولو په جد وجهد کښې دغه یکتائے روزګار دَ خپل سر اؤ وینے قربانی هم ورکړه.

خو نن شاعر کاظم خان شیدا هم دد غه نابغه هستئ کړوسے، دَ پښتو دَ نومیالی شاعر اؤ جری انسان اشرف خان هجری لمسے اؤ نامتو مؤرخ افضل خان خټک ځوئے دے. دَ کال ۱۱۱۴ھ مطابق ۱۷۰۲ء خوا وشا په خپل کلی اکوړی کښې پیدا شو دَ ماشوموالی نه تر زلمیتوبه حالات ئے په تیاره کښې دی. البته دَ پلار دَ مرګ نه پس کوم وخت چه دَ کاظم خان شیدا مشر ورور اسد الله خان دَ مشرئ پټکے په سر کړو اؤ خپل اقتدار دَ قیام او استحکام دَ پاره ئے حیلے روښے اؤ نورو خپلوانو ته کوم نا شونی حالات پیدا کړل کاظم خان شیدا په هغے خوښ نه وو. ځکه چه احتیاجا دَ خپلے پرنخ جائیداد نه هم دستبردار شو. مشهور مستشرق بنا غلے میجر راورټی سیلکشن فرام دی پوئټری آف دی افغانز کښے لیکی:

" اسد الله خان په پلار دَ نورو ورونړو دَ کاظم خان شیدا نه زیات مائل وو. اؤ کوم وخت چه دَ هغهٔ (کاظم خان شیدا) په بدګمانئ پوهه شو. نو دَ هغهٔ دَ ژړهٔ

د هر قسم د شکونو او شبهاتو د لرې کولو هر ممکن کوشش اوکړو. عین تور دے چه د هغه د لنډے د پاره د هغه اضافي ملکیت بخښلو سره د ټوله لور لے هم ورته کوږدن کړه وي سره دوے هر څه هر کله چه کاظم خان د خوشحال خان د خاندان او لمسو زیون حال د خپل پلار دلاسه لیدلے وه. نو ځکه د اسدالله خان د طرف د مدعا تو بخښلي د هغه شکونه نو هم سیوا کړل. اے یوه ورځ هغه پټ په پټه د وطن نه اووتو. د ځینو خیال دے چه د کاظم خان خپله چنځله خوښه نه وه. او د دے خبرے ذکر هغه خپل ورعذ سره هم کړے وو. ولے اسدالله خان د هغه یو هم وانه وریدو. او د خپلے قبیلے د رسم او رواج مطابق ئے د هغه د کوږدنے اعلان اوکړو.

د اردو یو نامورے ادیب او شاعر امیر مینائي د تذکره انتخاب یادګار په دوهم جلد کښے هم په دغه حقله لیکي . -

"او دریدلي شوکاد دا چه هغه د کاظم خان شیدا) د یوے د ختر صغیره پرورش کړے وو. چه کوم وخت هغه عاقله او بالغه شوه. نو د خلقو خیال وو چه دغه د ئے په نکاح واخلي. خو هغه داخبره خوښه نکړه. د هغه د دولتمند نیت پیش نظر د هغه جیني هم دا ریعنا د نکاح کولو) خیال وو. یوه ورځ په دول سنګار جوړه شوے تنهایئ کښے هغه له راغله. هغه ئے هم په مطلب اورسید و. زړے خپله کنه د شمع بلے بے ته یعنے او څه د ختائے چه کوته او سوه نو ند ئے لاس رانبکو او چه هغ ورته ترس اوکړو چه څه چل دے ؟ نو اوئے فرمائیل چه ما د دے امتحان د پاره په شمع لاس ایښے وو. چه نه اوګورم چه نه د اور نه ځلے شم او که نه. زه ئے متحمل نه شوم . او چه د دغه اور تاؤ ما ورته نه ځلے شو. نو د دوزخ اور چه د دینه ډیر زیات سخت دے . زه به ئے څنګه اودنځلے شم. هم په هغه ورځ ئے د هغه نکاح د یو صالح سړی سره اوکړو"

واقعات هر څه چه وي خو کاظم خان شیدا خپل کور کلے پریښود. خپلوانو او





خصوصاً د خپل ورور اسدالله خان نه ډیر په زړه درد مند وه. او هم د دغه زړګیاو د دا په حقله هغه پخپل دیوان کښے ځائے په ځائے ډیر داسے اشعار ویلي دي. چه د خپلوانی او ورورولۍ نه د هغه په خفګان او ناخوښئ ګواهي لري لکه سه

د دریاب له سره جوشنا د حباب او زړه چوی — شیدا قطع د امید بو ید له خپلو

شیدا لځه کړے دروے د یختا رشته دارشا . د سوزن زخم په زړه د هر انځور رہے

د اسدالله خان د لاسه ورک شیدا پخپل یو حسب حال شعر کښے وائي سه

د اشفاق طمع به څه کړے له اخوانه . نتیجه ئے ورکیده دی له کنعانه

د پښتو نخواه یوسف د پښتو نخوا له کنعانه په وتلو مجبور کړے شو. د کشمیر په درسګاهونو کښے د علم د زلیخے په لټون شو. څه موده ئے په دغه تکل کښے ولته وا ټوله د علم په چینه د تندے سړولو نه پس سرهند شریف (رقطبی هندوستان) ته لاړ ولته هم ډیره موده پاتے نه شو. او آخر رامپور ته لاړ. دغه ورځو کښے د ریاست رامپور حکمران نواب محمد فیض الله خان وو. نواب محمد فیض الله خان پخپله هم پښتون وو او نور هم دغه موده کښے ډیر پښتانه ولته آباد وو. کاظم خان شیدا هم ولته خوښ شو. نواب محمد فیض الله خان به ئے ډیر قدر کولو. په درنه به ئے ورته کتل کاظم خان شیدا هم د نواب نه خوشحاله وو. په یوزر روپئ ماهانه ئے د نواب سره ملازمت اختیار کړو.

پته بیا هم اسدالله خان د هغه د راوستلو کوشش اوکړو. خپلوان او دوستان به ئے ورپسے لیږل را لیږل. ولے شیدا د هیڅ اونه منل. څه موده پس خو یو اتفاق داسے هم شوے وو. چه کاظم خان شیدا خپلو هندي رفقاو سره د سیل او تفریح په غرض تر حسن ابدال راغلے وه . او چه خپلوان ئے خبر شول نو ورپسے ور غلل او کله هر څو مره کلکه ئے د تللو منتونه ئے ورته اوکړل. خو شیدا ونه منل.

دکاظم خان شیدا د وطن نه تلل، د اسد الله خان هغه پسه د دراوستو وپاره سری لیږل. ترحن ابداله راتلل او په کلیا ښینه نه کول. ددے هرڅه نه دا سے معلومیږی چه کاظم خان شیدا په خپل ورور بدګمانه وو. د افضل خان دلاسری، عبدالقادرخان خټک، څنو نورو رونړو او خپلوانو انجام د هغهٔ د ورانده وهٔ. نو ځکه هغهٔ پخپل ورور اعتبار نهٔ کولو. او سره د هغهٔ د کوششونو کومه مرغئ چه د هغهٔ د لاسه وتے وه د هغهٔ لاس ته رانغله.

کاظم خان شیدا په سرهند شریف کښے د نقشبندئے طریقے د پیر غلام معصوم مُرید وو. او د صوفیانه عقائدو په پیروئ کښے د عرفان په میوست وو. د نقشبندیه سلسلے په قصیده کښے د خپل پیر ذکر داسے کوی.

سه

پیره شاه د ولایت غلام معصوم دے — مقتدا د زمانے قطب الرجال
په یو منقبت کښے دا رنګ ستائی

سه

لکه نمر په جهان سلوم دے — نما پیر غلام معصومؒ دے
عجب شاه د ولایت دے — بلکه ماه د هدایت دے
په مثال شسته دامان وو — له غباره په امان وو
هسے لار شوه له خاکدانه — لکه غشے له میدانه
تمام نور لکه آفتاب وو — غوث او قطب د اقطاب وو
د تشبیه له دامه خلاص وو — د تنزیه په طرز خاص وو
په عروج د خیال ممتاز وو — د نزول په حال ممتاز وو
تر قدم ئے آسمان تخت وو — مشاهده د ذات بهجت وو
شریعت ئے بارګاه کښے — طریقت ئے په نګاه کښے

کاظم خان شیدا اګرکهٔ په فارسئ بنهٔ عبور لرلو. د هغهٔ د ذهن شاله





بنیرازی د فارسی شاعرئ د پاره هم دومره موزونه وه لکه چه د پښتو شاعرئ د پاره وه. ولے خپلے ژبے او وطن سره د مینے محبت او خاندانی روایاتو د ډیر زیات وپاره ئے په پښتو کښے د شعر وادب د یو داسے ګلستان بنا اوکړه چه هم حسین دے او هم رنګین. هغه داسے معلومیږی چه څهٔ خود پښتو بے قدرئ او څهٔ هغه وخت د پښتو بدنظمئ او بے نظامئ شکایت څهٔ قدرے مایوسه کړے وو. ځکه خو ئے ویلی دی. چه

سه

تر وقوع د واقع علاج سابق وی — ننګ نهٔ کا اوس څا پښیمانی
په تدوین د خپل زبان ځکه نادم یم — چه اونهٔ شوه په عمل ګل افشانی

دغه کل انشائ نه د هغه مطلب فارسی شاعری ده. داسے معلومیږی لکه چه دروستو هغه په دے خبره پښیمان وو. چه هغهٔ ولے په فارسئ کښے شاعری اونکړه. ځکه خو هغهٔ د خپل فارسی شاعرانه صلاحیت او استطاعت پخپله وائی.

سه

د مراث په شان ئے کا صفا د طبع — هر لفس پخپل مضمون کښے حیران ده
مستعد یم د فارسئ په قیل وقال کښے — په دغه لسان وی دا نکته رانی
سلاست به وو معلوم څما د طبع — په هر ځائے به ګڼا شعر خوانی

خودا نهٔ چه ګنی کاظم خان شیدا هډو په فارسئ کښے شاعری کړے نهٔ ده. نواب علی محمدخان او خان احمد د مرګ په تاریخونو ئے قطعے په فارسئ کښے د موزون کولونه علاوه نور اشعار هم ویلی دی. خو افسوس دے چه د کاظم خان شیدا

---

له لبش نا ے شور از ګفتګو با انجمن سازے — به مستان می رسد از پرده یا قوت آوازے
بسکه از شد خویش رفتن ګرمی جولان ما — آتشے افتد چو برق از دامنم در جان ما
پشت پائے می زند هر شعبهٔ شخشی ! — کس تبر ساز داغ بے سر وسامان ما

دَ فارسي نور کلام په لاس رانغلو.

کاظم خان شيدا لکه خټک چه هغهٔ پخپله مقدمه کښې ليکلي دي. دَ خوکنو دَ ميان عمر صاحب دَ کورنۍ محمدي صاحبزاده رحمه پخپله هم دَ پښتو يوُ ښهٔ شاعر دَ په زياتي خپل دَ ديوانا په بومبي هُل په کال ١١٨١ هـ کښې مرتب کړو. او ميان محمدي ته ئې اوليږلو.

نموړي شاعران دَ څنو لرغونو پښتنو شاعرانو دَ شاعرانه عظمت هم قائل وو دغه شاعران په دغه الفاظو ستائي ــه

چه په نزد دَ خرد خاص دي    په دا فن کښې څو اشخاص دي

ديرڅو نږ دَ خاندان[٢] دي    چه خوش گوئي وهمه دانا دي

سنبهٔ کلام لري حاصل هم    يوُ مرزا، دولت، واصل هم

مرتب ئې لوئې ديوان شهٔ    چه قلم په لاس دَ خانَ شهٔ

مستند دَ درست افغان شول    تصانيف ئې فراوان شول

لطافت واشارات هم    سلاست وعبارات هُم

بلکه خود همه داني هم    دير دقت دَ معاني هُم

په اقلام کښې ئې اهره    په کلام کښې ئې ظاهره

طريقه ئې کړه. ا نه    سليقه ئې کړه عيا نه

بل اُستاد دذے کوره دے    خانَ ممتاز دَ تمام روه دے

---

[١] دا دغه ديوان قلمي نسخه روستو بيا ميس راورتي ته لاهور کښې په لاس ورغلهٔ ؟؟

[٢] اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، سکندر خان خټک، صدر خان خټک وغيره ته اشاره ده ؟؟





دَ رحمان بابا او حميد بابا شاعرانه همه گيري او شان دا سے بيانوي.

په دا قام په دا کړوه کښې    په ديار دَ تمام روه کښې

دوئيم ځائې ئې پيښور دے    يوُ په سوا ئې زبان آور دے

يعني دوئي سحر حلال کړه    چه مومند[٢] وقيل قال کړهٔ

خوخپل يوُ شعر کښې په خوشحال بابا تنقيد کوي. او وائي. چه په ټولو پښتنو شاعرانو کښې که په شيدا څوک برتري يا فوقيت لري نو هغهٔ خانَ دے ولے هغه هم په ادبي لحاظ نه. بلکه دَ ادب او تعظيم په لحاظ ــه

دَ آدب په مقتضي دَ خان شرف دے    دَ افغان دَ شعراء په شيدا باندے

کاظم خان شيدا دَ رحمان بابا دَ دريو مختلفو غزلونو په تضمين دوه مسدسه هم ليکلي دي دَ عبدالقادر خان خټک دَ يوُ غزل په تضمين ئې يوُ مخمس ويلے دے. دغه نه علاوه په يوُ مسدس کښې ئې دَ رحمان بابا، خوشحال بابا او پرته دَ عبدالقادر خان خټک نه دَ يوُ څو نورو لرغونو پښتنو شاعرانو دَ غزلو شعرونه هم راځائې کړي دي خو تاسف دے چه دَ شاعران نامعلوم نکړے شول.

زموږ شاعر دَ فارسي څينے شاعران لکه عبدالقادر بيدل، صائب، شوکت بخاري، محمد طاهر غني کشميري، ملا قاسم ديوانه، او طالب آملي هم ستائيلي دي. دا سے ښکاري لکه چه دوئي نه هم دير متأثر وو.

نماسره دَ قلمي نسخې په حاشيه دَ کاظم خان شيدا دَ وفات تاريخ په يوه قطعه کښې دا شان بيان کړے شوے دے. ــه

دَ کباب څومندي ئې کون ومکان تريخ شهٔ    دَ شيدا په آشيانه کښې جهان تريخ شهٔ

---

[١] رحمان بابا ؟؟ [٢] مطلب رحمان بابا او حميد بابا دے ؟؟

درته کوته په خله شوه. د پښتو شاعرئ دغه لفظي صنعت ګړ د پښتو شاعرئ په هغه اُفق فردوس لیدلے شي. چرته چه پرته د حسینې عکاسئ نه د جدّت، تشبیهاتو، کنایو، استعارو، لفظي ترکیبونو، لفظي رعایاتو، تلمیحاتو، محاورو تخیل، شاعرانه بلاغت، او معنی آفرینئ حسن د شاعر په شاعرانه چمن یو ابدي سپرلے خور کړے دے. لکه

## عکاسي

شیدا عکس د نوګل په آب کښې لید شي ____ که اغوستے دي ګلفام، جامے مهینې

احاط د نوي خط د سبکلیه مخه ____ که په خله کړه اژدهاما و نخشبه؛

ته به وائے چه غنچه په نوراغله ____ لبی له خوابه چه غزېږي عاکل اند امه

د آفتاب پنجه، حرت په نور مغلوب کا ____ چه شوخئ ئې شي په لاس د حینا کمه

## جدت

ستاشرګان هسے لیده شي په چشمانو ____ لکه اونګئ ناوک په آهوانو !!!

په تحریر ئې صرف د سترګو روښنائي ده ____ چه مصرعه ئې د آبروشوه محرره

معطل په عارضه د شام غریب دے ____ که ئې زړه په حلقه بند شو د کاکلو؛

لکه مره باتئ د شمع په محفل کښې ____ خود په خود پخپل ماتم کښې سیاه پوش یم

توکل ئې نرمي ورکه کړه په بیم کښې ____ شیدا! آب هسے په خله کښې د شمشیر یم

په ګنداز کښې ئې درست ځان یوه قطره کړه ____ چه شبنم غوندې له ګله هم آغوش یم

څه علاج او کړم د رنځ روغه عالمه! ____ وړنی ما لکه شعله آب حیوان هم

## تشبیهه

د بلبل خاطر مائیل په رنګین دے ____ که په جام راغله مینا، باده ریختن ته

سیاهي ئې د چشمانو په شوخئ کښې ____ د غزال سایه پرته په سپین میدان ده

د چشمانو ته ئې خم دواړه آبروئ ____ صیادان د غزالانو کا بنکا رد نه

سیاهي ئې لکه دود د سوزان اورشي ____ په خمار کښې چه ئې ګله چشمان سره دي





دواړه زلفې دې په اور د رخسار سېنه شوې ____ اوس په صیاد، د ختنه زړونو بیان دے

په سنبره کښې ئې د خط و لب جلوه ده ____ که موج نور دي د لبو په مینا کښې!

## کنایه

اعتراف په اعجاز اوکړه د پاکانو ____ په آستین کښې د ګرداب ید بیضا دے

څه عالم درته ولاړ دے، نګاه لکړے ____ لکه د صبح د تصویرنا نه آفرینې!

لکه شاخ چه په افراط د ګلو خم شي ____ حمیده له خپل عذاره سره ورے زلفې

په ځانه کښې تواضع لکه کمان کړه ____ خونریز عاکوه که مرد ئې په میدان کښې

## استعاره

شب ماج به ئې مهتاب کاستا د زلفو ____ د آفتاب پنجه که ځان د عاج شانه کا

د غنچې د رباط دروپه واکیده ده ____ قافله د رنګ و بو درومي صبا شه

چه سرور په مستعار کا، شیدا داؤ ده ____ د دهقان په دانه رقص آسیا کا

ستا د زلفو په لوړ زړونه خرام کاندي ____ که د روم قافله درومي هندوستان ته

## لفظي ترکیبونه

د صبا په سعي ګل د مانګې څه شي ____ کله جوړ د ترش جبین د شګفتن ته

سرے هسے په صحبت د تنازعو دو ____ چه هرګز ورته زلفې بیا له داره

په کثرت ئې د شستنا کله ځان سپین کړه ____ لکه سترګې چرے خلاص نه یم له تورو

## لفظي رعایات

چه سیاه ئې شانه دارد بخت کیسو شي ____ هغه تل ګرځي شیدا په پریشانئ کښې

د ګرداب په شان ئې ترآستین په او بنکو ____ کله خشک په تمام عمر کښې یو دننګ څه

پریشانه ئې شوه جمع لکه شمع ____ چه په حال ئې توجه رونړ سیاه کړه

د غنچې سره تل غم د صبا بوسه ____ مالید لي دي د پر جمع پریشان هم

د شبنم دانه که تخم شي د ګلو

نره به سوے په دید ت نه شي د بلبلو

خ

## تلمیح

دَتور شعلہ بہ آب دَ فوارہ شی — سور جوشی کۀ د رتہ یادہ دا ایّام کړے
نشتہ بوټی ستا دَ قمیص پہ در سبت جہا نکښے — خۀ امکان لری پہ مصر وپہ کنعان کښے
دَ صدا پہ شان لے بلہ صدا نشتہ — چہ بلا یاد پہ نسہ دَ فرہاد دَ بیستون کړم
زمانہ چہ شیدا خانے دَ ګدے مومی — څوک مندری دَ سلیمان پہ انګشتر کښے

## محاورہ

تل پہ ستم دردمی اوبۀ دَ بالا دستو — چہ نظر پہ فوارہ یالے پہ داب کړم
دیغے سینے شوے دَ خلقو، لکہ او سپنے — خپل اُ خزا دی لہ جګرہ کوینان هم
اوس ګردش بویہ پہ کام دَ شیدا چرخہ — هرګز نۀ ګرځی آسیا دَ چالے دارہ

## تخیّل

کۀ دبُل ژاتہ ضرور یکہ نامہ شی — پہ زبان دَ غیر خپل کلام آغاز کړم
لطافت دے دَ مزاج تر غنچے تنګ کا — پہ چمن کښے کۀ فریاد دی دَ بلبلو
دَ طینت خشکی صحبت کا بے ګرمئ — دانکتہ، سنګ و آتش کا میرهنہ
چہ تصویر پہ هریسان دَ شوخ وشنګ شۀ — لکہ برق هسے روان پہ هوا رنګ شۀ

## بلاغت

اے پہ مصر دَ آسمان پہ شان خونریزہ — مۀ شہ توُرہ ستا دَ کین پہ فتنہ تیزہ
چہ عالم دَ تلوّن پہ هردم وینی — حیرانی دَ آئینے شوہ هم نفسہ

## معنیٰ آفرینی

دَ غنچے دَ رباط قدر پہ واکیدۀ دے — قافلہ دَ رنګ وبو درومی صبا شۀ
تورنیمۀ لکہ قدم کیږدم پہ لار کښے — چہ ورځم دَ هغہ سبکئ تمسکنہ
دَ عاشق بہ لہ غمونو فراغت وی — لہ سختئ کۀ سنګ رها پہ روغ صوت دی

ایجاز هم دَ کاظم خان شیدا دَ شاعرئ یو اهم اړخ دے. دَ هغۀ پہ دیوان کښے ډیر داسے اشعار شتہ چہ پہ ځاځکی کښے دَ سالم سمندر اوُ یا پہ ذرہ کښے



ذ

دَ نمر دبندیز حیثیت لری. لکہ

ظرف تر شاہ ذتر ګدا لکہ سایہ دے — اُفتادہ لویہ فرتہ دہ پہ دُنیا کښے
شیدا کوہ بہ تمام آب لکہ دریاب شی — کۀ تفهیم دَ معنیٰ اوکا پہ صدا کښے
بلدی بہ دِ صفا اوکا جوهرہ — دَ فنا پہ لار کۀ چرے تګا پو کړے
سر ومال پہ ادا ورکړہ، بے تکرارہ — دا سودا، بازار دَ چون و دَ چند نۀ دے
دَ تحقیق ستر ګے بینا کړہ شیدا ګورہ — لوټے دفترے یو ریزہ دَ تور وسپین دے
چہ لہ ما پہ سخت ګوزی لکہ شعلہ شی — هر قدم ئے پہ خار تیز لکہ شعلہ ځی

دَ کاظم خان شیدا سرہ دَ خپل ورور بد سلوک اوُ جلا وطنئ ژوند دَ هغۀ پہ کلام کښے درد اوُ سوز هم پیدا کړے دے. درد اوُ سوز یا سوز اوُ ګداز چونکہ ذوقی اوُ وجدانی قوت لوم دے چہ دَ لوستونکو اوُ اوریدونکو پہ زړونو کښے هم هغہ دَ درد اوُ سوز اثر پیدا کوی. دَ کوم واقعہ بہنے چہ شاعر یا لیکونکے هغہ پہ شعرونو یا څرګرنبو لیکلو مجبور کړے وی. هم هغہ وجہ دہ. چہ دَ کاظم خان شیدا دَ ژوند الیے دَ هغۀ پہ کلام کښے حقیقی سوز اوُ ګداز پیدا کړو. چہ هر حساس طبیعت ئے دَ هغۀ پہ کلام کښے محسوس وی لکہ

بیکسی ئے دلاسے تہ خود را پاس — کۀ پہ دیر و نا دو کښینی زما غاړہ
دل تنګی کړم لکہ ګل، پہ خندا ورکہ — کۀ ئے باد دَ صبا بل پہ خوند اور کا
چادَ نقش پہ شانے هسک لہ خاورو نکما — پہ نادرئ دَ هر چا نسیم قدمونہ
پہ خاطرے لکہ ګرد چا نفشانی دہ — کۀ ئے باد دَ هغہ شوخ پہ دامان پریږدی
کۀ پہ اوښکو ئے سیراب کا لکہ ستر ګے — شیدا کلہ ګل دَ خپل ګلستان وینی
هیڅ علاجے لکہ مانۀ مینا نۀ شی — دَ شیدا پہ نسہ یوځۀ دَ غم پہ هار دے
پہ مزارے دَ ګیاہ نبا لوتہ ئے شوے — لاے نرہ پہ جوش دَ آہ وفغان پړے شے

التفات ے په احوال دَ خوارانو سیه … دَ مینا غونډی ے نیست په جګر خون دے
خپل ناکام په دیوانه شیدا د دنیا ئی … که دامن پهکانږ وړک لکه کهسار کړے

## تصوّف

دَ شیدا شه وړاندے هم په عامه داخلی او خارجه شاعرئ کښے دَ تصوّف رنګ وو. خودا ے معلومیږی لکه چه زمونږ شاعر دَ حقائق او معارف لوستنه کړے وه نوځکه تر دیره حده دَ شیدا په کلام کښے هم هغه خیالات دی کوم چه دَ هغوئ نه وړاندے په خوږ خوږ رنګه او خوشحاله بیان کړے شوی دی. په دغه حقله دَ شیدا په کلام کښے څۀ خاص نوے څیز خو نشته. البته دَ تصوّف مسائل کوم چه زمونږ شاعر په خپل مخصوص شاعرانه رنګ او انداز کښے بیان کړی دی. تو یوځدے نے شاعر ته مخپلو همعصرو شعراؤ کښے یو نمایان مقام ورکړے دے. توحید وجودی هم دَ هغهٔ دَ شاعرئ یو ځلانده او درے اهم اړخ دے دَ مسلمانانو په ادبی آثارو کښے ابنِ عربیؒ دَ وحدتُ الوجود علمبردار ګڼلے شی. افلوطین او اسپنوزا چه د دغه نظریے کوم وضاحتونه کړی دی. اګرکهٔ زمونږ شاعر به هغه نهٔ وی لوستی. نوځکه دا ویلے شو چه غالبًا شیدا ئے هغه تعبیر پیش کړے وی. کوم چه دَ فارسی لوئ، صوفی شاعرانو لکه مولانا رومؒ او مولانا جامیؒ نه لاړه دے. هرڅوکهٔ شیدا دَ حضرت مجدد الف ثانیؒ سرهندی سلسله عالیه نقشبند یه سره دَ پیر معصومؒ په واسطه تعلق لرلو. خو قدرتی امر وو چه هغهٔ دَ هغه لوئ لوئ صوفی وحدت الوجودی شعراؤ دَ ذوچا آثار چه په تیره زمانه کښے عام طور سره لوستهٔ شو، هم څۀ اثر شوے وی. دلته به دا وضاحت بے ځایه نهٔ وی چه حضرت شیخ سرهندیؒ دَ وحدت الشهود دَ نظریے حامی او مبلغ وو.





پښتو ادب کښے دَ وحدت وجود مسئله په رومبی ځل دَ روښانی دور شاعرانو لکه دولت لوانړی، مرزاخان انصاری او واصل دیره په وضاحت سره بیان کړے ده. هم دغه وجه ده چه شیدا په خپل کلام کښے د دغه مسئلے هم هغه تعبیر پیش کړے دے. کوم چه مسلمانانو کښے دَ ابنِ عربیؒ او پښتو کښے دَ روښانی دور دَ زمانے راسے رائج دے شیدا په دغه مسلو دَ خپلو خیالاتو اظهار په دے ډول کوی

ــــــه

خپل وجود یم لکه شبهه مکدر کړے … وعدم ته ئے آرزو دَ صبح ودم کړم
معنوی نزاع ئے نشتر په الفاظ کښے … زمزمه چه تل، په دیرو په حرم شی
مدرسه دَ ذره خالی بویه له غیره … تا به کے به د تکرار دَ عمرو زید وی
تعین ئے دَ نفس او حُی له میا نه … کا به کم، سرآماسی، دَ حباب څا څکے

دَ لیلیٰ مجنون په حکایت کښے کوم وخت چه مجنون په عشق کښے دَ منصور مرتبه بیا موندی نو بیا مجنون لیلا هم نهٔ پیژنی. اګرکهٔ لیلا دَ مجنون دَ پوهولو هر څو مره هم کوشش کوی ولے هغه ورته وائی

ــــــه

لیلا زهٔ په جهان سلو مه … د الیلا را غله له کو مه

او کوم وخت چه لیلا په ټول حقیقت پوهه شی نو وائی

ــــــه

مجنون ورک شه په لیلا کښے … نهٔ شی موند په دا صحرا کښے
غُنچه ورکه شوه په ګُل کښے … بیضه ګُم شوه په بلبل کښے
تعین او وحدت له میا نه … نشته هیڅ ئے دَ لیلا نه
کهٔ په کور کهٔ په صحرا ده … راشه او ګوره لیلا ده

او دغه نه پس زمونږ شاعر بیا په خپل خاص انداز کښے وائی

ــــــه

اے دَ عشق په کار نادانه ؛ … راشه واوره له شیدا نه

۴

توهغه چه تهٔ لا تهٔ ئے — غیرئے تهٔ په دا هستئ

---

بے غمی دغه د لاره — غم دِ خونه کړه ویجاړه

هغه دم چه تهٔ بے تهٔ شوے — یار دِ وائی، واکړه، نهٔ شوے

د طلب له غمه خلاص شوے — په جمله بے غمئ خاص شوے

مستغنی شوے له وصاله — خاص د هجر له وباله

نهٔ وصال شته نهٔ هجران شته — نهٔ ئے غم شته، نهٔ ئے نشان شته

دا کلام د دانشور دے — چه مشهور په هر کشور دے

قیس خیرے د حباب شهٔ
له دریاب سره دریاب شهٔ

همیش خلیل

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

# مقدمه

راقم دد دې صحیفې محمد کاظم شیدا تخلص خټک نسب حنفي مذهب نقشبندي مشرب (غفر الله تعالیٰ ذنوبه وستر عیوبه) په عرض د سخن شناس روشن قیاس رسوي. هرچند په نزد د خردمند، شان د سخن رفیع وبلند دے

بیت

آب بود معنی روشن غنی — خوب اگر بسته شود گوهر است

او اهل دد دې فن عزیز وارجمند

بیت

از سخن مارا دماغ دیگر است — چو صدف مغز سر ما گوهر است

میکن نه چه په دکان کښې د شاعرۍ قلیل البضاعت یم او په ایوان د زبان آورۍ زرنګار د صناعت نه لرم. خپل مناسبت افطری له دې شیوې سره په محل د قصور کښې موم اوموانست جبلي له دې د تیر په مراحل دورتر، باوجود آن په عنفوان الشباب کښې استراحت د حضر په محنت د سفر مبدل شه او راغلې په شام د غربت صبح د وطن مالوفه طالع نه دے انواع د محن دلشکن چه لازمه د سفر ومنافی کراهت وفراغت دے. لاحقه د خاطر فاطر.

## فرد

مُدتے شد چون قلم در مشق سرگردانیم ‌‌‌‌ تا چه آرد بر سرم آن خط پیشانیم

بالجمله په کلبه دِ جدائیٔ اؤ په ناوېده دَ تنهائیٔ کښے چه مصداق دَدے مضمون یم.

## فرد

دل ما تپید و نیست کسے داد رس ما ‌‌‌‌ از قافله دوراست خروش جرس ما

باآنکه خواهش دَ جمع وتالیف لرم خو حلاوت بیاب تاثیر کاشم او حاصل الکلم نیل وقال مطالعے حاجت دے

## فرد

آئینه ام از نور نظر میکشد آزار ‌‌‌‌ تا عاقبت کار من از هم نفسان چیست

بل مبتلاء حال اؤ جهان دوم ، اؤ بهره مند له دے شان ونشانه

## اَبیات

فگنده است جنونم بمشق کینهٔ خویش ‌‌‌‌ بلوح سنگ کشم نقش آبگینهٔ خویش

زبس شکسته دلم لب بخنده وانکنم ‌‌‌‌ نمونهٔ جرس بیدلم صدا نکنم

ز آشنائی مردم چنان گریزانم ‌‌‌‌ که چشم بر رُخ آئینه نیز وانکنم

. تسکین دَ خاطر شکسته وَخسته له حاله وارسته په فحوے دَدے کلام متصور شه

## رباعی

بیدل کلف سیاه پوشه نه شوی ‌‌‌‌ تشویش گلوئے نوحه گو نشوی

بر خاک بمیرو همچنان بر باد ‌‌‌‌ مرگت سبک است بار دوشه شوی

## بیت

چو آهنگ رفتن کند جان پاک ‌‌‌‌ چه بر تخت مردن چه بر روئے خاک

مع ذالک هغه رموز ودقائق ومعانی چه بلند همتان وعالی فطرتان

استعداد فهم لری اؤ غوض دَ حقائق دهیسے راز نهانی چه صاحب نظران اؤ

دیده وران ئے په استکشاف کښے نفی اوو هم کا یعنی په تلقین دَ یقین مستفیض



شی زه خپله مدارکه کښے قاصره وینم اؤ حوصله ئے په ادراک غیر قادره

اؤ شیوه دَ رحمیت په منظوم کول دَ معانی دنیه مُصره نهٔ شوه

## فرد

نِم چون تو آفتاب زِ جهان پسند دارم ‌‌‌‌ من اگرچه ذره پستم نظر بلند دارم

لهٰذا متصدی دا مرمذکور نهٔ وم مگر حیاناً مقتضی دَ سبب

چه وُویل شول اؤ حسب الطلب ئے ودکول.

## بیت

نیستم شاعر ولے در یادِ رعنا قامتے ‌‌‌‌ در دِ دِلم بے خواست موزون میشود

## مصرع

درد که لاچار فریاد خیزد ز درد

قیام په تدوین دَ مسودات اصلا منظور نهٔ و. اؤ اقدام وترتیب ته دَ متفرقات نامحظور. اؤ په سبب دَ عدم التفات سائر مسودات کرت ثانیه په طریق دَ اصلاح وتدقیق مطمح دَ نظر عمیق نهٔ شول. ظاهر دی چه کمال دَ صناعت په تلاحق دَ افکار دے اؤ ازدیاد ئے په تتابع دَ انظار.

## مصرع

کار نیکو کردن از پُر کردن است

اؤ په تقدیر دَ خلاف نقصان دَ صناعت مبنی په بداهت او کښه امید چه ژرف. نگهبان باانصاف وشکرف رایان بے انتسافی خاصه حضرات چه په طنطنه دَ خیال مستفیده وتا. اؤ زمزمه دَ سحر حلال ئے مستحضره وی په

تقلیل دَ معنامین منائقه نهٔ فرمائیلهٔ او په تنقیص دَ صنائع کښے راته معلومداوواڼ
او په صفاد بادی النظر مشاهده دَ عیب و هنر شی او په ضیاء دخِرد متمیزهٔ
نیک و بد، او التفات دَ خاطرے. اقتضا ،، دَ خذ ما صفا، دع ما کدر،، په
کسوت دَ بینام کښے جلوه پیدا کا. یعنے لفظ - دَ معنیٰ بالاستیعاب متبحر ونظر
دَ اصلاح ته وی او مختص له خطا په صلاح هرچند ظاهر دے کلام دَ
مثنوی دَ هغه ابیات له ظاهره سره چه گونه ستائش په علو دِماد استعداد
خینی مستفاد دے. او په صفت کښے دَ خپل اشعار تند رسخن سازی کړے
ده صورت دَ نقیض نری. لاجرم توفیق دَ دواړو محتاج دَ تاویل شه. وجه دادَ
چه هغه ویل مبالغتاً دی غرض تتبع دا کابرو ده. نهٔ ترفع خپله؛ دیل په
تایید دَ مدعا تاویل دَ نازک خیالا تو دی. او موید دَ مطلب تقریر دَ رنگین مقالو

**بیت**

باین شوخی غزل گفتن علی از کس نمی آید　　بایران میفرستم تا که میگوید جوابش را
کجا نا مرعلی تا منتهٰی گو دسوم گردد　　نه گوئی گر رود زین دَ هر نیکو ترشو پیدا
یو خوشحال یو کم سل ختک نور په طبیعت کښے

ناره شه دَ رحمان سربنی له یوه فرد
ترکوم مے کښوم چه مسلک دَ جم غفیر دے. او معبر دَ عالم کثیر دا بیان
واقعی نهٔ دے. او دَ ثقه دَ کلام بے حاصل ولاطائل نشی ویل. تر هغه چه
منهوم دے کلام محمول په مبالغه نهٔ شی تاویل یے متعذر دی. افاده
دَ اشعار به حکم دشواذ پیدا کا او سامعین برے په استبعاد کښے پریوزی. پس



دا طریق چه مختار دَ جمهور شه. سلوک دَ رفتار پرے ضرور او کنگره دا نکته
سخن رس ته مکشوفه ده او دَ فروهیده کس ته معروفه. چه سخن پرداز
په خپله گویائی کښے که صنعت دَ مبالغے نظر انداز کا. غالب اوقات به په هنگامه
دَ سخن آرائی کښے سپرانداز وی. ایضاً قول دَ حضرت شیخ نظامی گنجوی رحمة
الله تعالیٰ علیه چه په دا فن کښے موصوف په شان بزرگ دے. او په طرز دَ سخن
کښے معروف په شان سترک. کاشف دده معنیٰ شهٔ او ناطق په دا مجموعه.

**بیت**

در شعر مپیچ و در فن او　　که اکذب اوست احسن او

غرض له طرح دَ مثنوی په سبیل دَ خطابت. کتابت دهسے تالیف دو. چه
مشتمل په توصیف دَ اهل درد و دَ محبت وی. اما هیڅ وخت له اوقات ماضیه
تا بحال مساعد دَ عزیمت او هیڅ زمان له ازمنهٔ سابقه الیٰ آن ممد دمشیت
نهٔ شه دعرفت ربی بفسخ العزایم) ولا بد ولا چاره برام دَ امر او انصرام دَ
کارے په تعویق حواله کړه او لحوق و شمول دَ مثنوی له دیوان سر مقرر شه

**بیت**

دِل پریشان و پریشان تر از آن زلفِ سخن
به چه جمعیت خاطر در گفتار زنم

یو شخص همنام زما ساکن دَ سرائے چه اکوړے ئے دعم ورته وئیلے شی له
حواشی دده خاندان دو. شاید چه په تاثیر دَ صحبت ئے کم و بیش رویه
دَ سخنورئ بیشی نهاد دَ خاطر کړه. او دَ انسان دَ حال ئے په قدر دَ استعداد

په ایجاد د مضامین مترنم وو. او از انجمله څو غزل ئې په غایت و نهایت شهرت کښې دی او په محافل و مجالس کښې زبان زد د غزل خوانو. لہ مشاهیرو د یو غزل ئې دا مطلع دی

وُبه مرم عالمه! په ارمان د تورو زلفو

کله به راته رسی درمان د تورو زلفو

لاکن نامبرده چندان معروف و مشهور نهٔ و. په واسطه د اشتراک اسمی هغه اشعار په تردد کافه عامه مضاف و ماته دی حالانکه زما له اشعارو نا اسم اصلاً مصرح نهٔ دے. دا معنی په تخلص مشروح شوے ده. او هم معرفت د متکلم په سیاق د کلام متفرع دے. او د شناسائی د قایل په داب د قول کښې موده. دا نکته د کامل عیارانو د تمیز، روشن ده او دقیقه دے کارو دانش شناسو برهن. چه دا منافت و ماته خطا دے او نسبت بے جا. رچیه ته سوزان اخگر او کجا فروزان اختر!) دریغه خوانند ه د اشعار گو و هاگوره و نامعدود از دانند ه د گفتار و معنی په نزد مفقود. لاجرم په دا زمره خاصه په فرقه د اهل روه کښې له حیثیت د طبع نارسا د فکر خطا غزل مرزل شهٔ. مهزل غزل.

## بیت

زگهر سنجی این جوهریان نزدیک است

که زساحل بصدف باز برم گوهر خویش

او سبب د تالیف دا وو چه له افواه د بعضے مترددین مسموع شوله چه مخدوم زاده د ولایت نژاد، نتیجهٔ هدایت و ارشاد میاں محمدی سلمه الله تعالیٰ خلف الصدق د شیخ الاجل ولی الاکمل میاں محمد عمر دامت برکاته طبع



جیده لری. او سلیقه د سخن شناسی کامله په دبدبه د سخن آرائے قصب السبق له همسرانو وړی. او په کوکبه د خوش سرائے مقدمة الجیش د همکنارانو دے. اکثر دواوین د اسلاف و مضامین د حال دنگینی وصاف ئې فراهم کړی دی. او په مطالعه ئې تفریح د قلب و تشریح د صدر نقد وقت د مخدوم زاده دے. اگر چه زهٔ ئې په حسب د صورت په زیارت مستعد نهٔ یم. اما په دلالت د قرینے معلوم شول چه د چاله خُلہ ئې زما د خیال د مقال په سمع شریف څهٔ رسید لی دی.

**مصرع:-** "عالم همه افسانهٔ ما دارد و ما هیچ

بنا بر استیلاء شوق په تتبع دو ردر محمد عابد خان رطال الله عمرہ) و وماته امر په تدوین و ترسیل د اشعار اوکړ. زهٔ او ورورچه فی الحقیقت په مفهوم د کنفس واحد محقق یو، هغه امر به په مشابه د بالاصابه متخیل شهٔ او امتثال ئې په مرتبه د لزوم متصور او هم خاطر د برادر عزیز و گرامی او پاس ئې په ما سبب الزم والنسب و. لهذا په صدد کار کښې شوم مهما امکن څو غزلی او په ترتیب د اشعار کښې اوکړه. منقولات او مسودات متفرقه او مرقومات د منشات منظومه. هرچه لاس ته را غلهٔ په قید د ردیف دے جریدے ثبت شول. او په صفحه ددے مسطر کشیده چه قابل د ربط و ضبط وو له هغه اشعارو چه هنوز نو تجت. آموز د نو مشق وو او د بهره اند وز د نا سرائے شایع و غیر شایع هرچه دی قلیل عبالمعنی و اقل باللفظ و المعنی په نسخهٔ مذکوره کښې داخل کړه.

## مصرع

«گر قبول افتد زهے عز و شرف»

ما ورا ځی له دے چه نقصان دَ بعضے صنایع په کښے مطالعه شه. تعلل ئی په ترقیم کښے مناسب وو، او تکاسل ئے په تسوید کښے اولی. می باید چه خوانندګان دَ دیوان. تمام دیوان په خپل صرافت پریږدی. هغه اشعار ته په کښے مداخل نه ورکوی او احتمال ئے له ارقامه لازم او ګڼړی چه حکم دَ تحریف لوی. او له امثاله دَ تصحیف دی رعایت دَ صواب په مجموعه دا مور مرجوع او په جمله موضوعه دَ مصنوعه کښے مقدور دَ نوع بشر نه وی.

## مصرع

«که هیچ نفس بشر خالی از خطا نبود»

بو به چه خطا په ذیل دَ احسان پوشیده شی او لسان دَ اعتراض درکشیده او ترتیب دده دیوان په شهور سن زر، سل، یو اتیا (۱۱۸۱) کښے دَ هجری واقع شه. تاریخ منظوم چه مشعر په انتساب دَ مؤلف دے. صورت دَ تقریر دا هسے بیا موند او هیئت دَ تعبیر ئے ارتسام دا رنګ حاصل کړ.

## قطعه

په دا باب ده استدعا دَ عزیزانو
چه مجموع شه حلاوت دَ مقالات

دَ تدوین تاریخ ئے راځه په دا شان ووے
دَ شیدا دیوان دے شهد او خفه نبات (۱۱۸۱)



او سره له هغه سبب ګویا علت غائی له دے هم دماغ سوزئی او مقصود اصلی له دیرے چراغ افروزئی دا دے چه په شرط دَ حسن قبول تر هغه چه په دا تیره خاکدان و تیره دَ سخندان باقی وی. او نکته دانی دَ اشعه دَ آثار لری. او خوشخوانی اشاعه و شعار یو نیم بیت و غزل له دے مجموعی رطب اللسان دَ ارباب ذوق وی. او ضمناً ئے مؤلف په دعا یادیږی او په آثر دده دعا له تا بعانو شی او په یمن دَ تبعیت له مقبولانو.

## بیت

مګر دَ هد پر توفیق چنګل بازم — تدرو رِ یخته بالم هوا نمید انم
خورشید جهانتاب فروهشته سنها — تا شبنم افتاده بر آفلاک بر آید
دست در پائے کبوتر زده ناګاه رسید — مور مسکین هوسے داشت که در کعبه رسد

امید له اشفاق دَ اخوان الصفاء او له وفاق دَ خلان الوفا هسے لرم چه. دا خرف ریزه په مقتضی دَ کمال شفقت دُر دانه فرض کا او ګوش دسماعت ورته ونیسی

## رباعی

جلوه مفت است و دیدنی دارد — به تماشا رسیدنی دارد
عالم افسانه است و دیګر هیچ — حرف ما هم شنیدنی دارد

(کاظم خان شیدا)

# حمد وثنا

اے دَکل جهان صنیعه !    اے دَ هر آسمان بدیعه !
کامله قدرت دِ ستا دے    نادره صفت دِ ستا دے
لوئے دیوان دِ مرتب کړ    چه انسان دِ منتخب کړ
هر ورق ئے گوناگون دے    هر مضمون بُوقلمون دے
هره ورځ ورق گردان ئے    مخترع دَ نوی شان ئے
تاله خاورو آدم ساز کړ    تا همراز او ستا دمساز کړ
تا مِصداق دَکرّمنا کړ    په هراسم دِ دانا کړ
په وجود له خاکیا نو    کړ مسجود اُ فلاکیانو
ساز دُ آب دِ گردنده کړ    شب و روز دِ رونده کړ
تابنده دِ پر شهاب کړ    مانند ه دِ دَحُباب کړ
چه په ملک کښے دِ وجود دے    بهره مند د ستا په جود دے
که بے دست وپے ماهُوت دے    ستا په خوان کښے سیر په قوت دے
مارهم خپله روزی مولی    کاه خپل کاکاهے شو می
دیده وا خطا له عقربه    لقمه ورکړے حمار به !
ستا کرم پاکه سبحانه !
مکس نه شرمے له خوانه



# مناجات

اِلٰهی دَمینے درد    گرم دل آهونه سرد را
خلاص کړه ماله بے دردئ    له دے هسے زړل سردئ
زړه په شان دَغنچے واکړه    آتشی زما مینا کړه
تل دَجوش په مے لبریز ه    په خروش تو نے لبریز ه
بیا په هسے شان بے تا به    چه سیالی کا له حبا به
په یوه ساعت کښے نه وی    دَ هوا په جنبش چه سی
چه په سوز دَ شفق خلاص شم    دَعلاج له غمه خلاص شم
نکسار حُما حیگر کړه    تربیت ئے په اختکر کړه
بیا سینه صدف وار چاکه    جوشیده پکښے ښکاکه
یا ئے درسته برک نے کړه    پکښے سبز نا وکے کړه
پوشیده دِ هسے شان وی    چه سوفا رئے بے نشان وی
چه په هسے شان نهان وی    چه غافل ځنے کمان وی
نزده اثر حُما په آه    جنوه کړ په هرنگا ه کښے
ورکړه رنگ له حیگر خونه    فواره ے کړه گلگونه
تورلیمه زما سحاب کړه    بارنده ے دَسیلاب کړه
رنگینه ے کل سوشک کړه    دَیا قوت دَآب ئے رشک کړه
ماسوخته دَنمر په شان کړه    بل په ما هغه نیران کړه

چه ظلمت ئے مدام دور شی — دا ځکرا یږے ئے نور شی
لکه آب د ملغلرو ئے — آمیزش کړو له ما لرے
ما په طور د سیماب کړه — ورک له ما د شبنم داب کړه
چه دا ډیر آمیزش کم کړم — د صحبت له ګرمئی رم کړم
لکه څوک په خپل ایوان کښے — خوښ یم زه په بیابان کښے
که آسمان ئے هم آویز وی — په هر آن ئے آفت خیز وی
ما په وضع د پروین کړه — دلجمعی زما آئین کړه
د هغه قاتل طالب یم — په هغه زخم راغب یم
چه خون ریز په شان د میغ کا — خو چه پوره ته آبدار تیغ کا
زه د برق په دود مجروح شم — په یوه تپش بے روح شم
د هغه ساقی له دسته — چه ئے شور نه ځی له مسته
جام ئے صاف لکه خورشید ئے — په حیرت ورته جمشید وی
بیا د جوش په ځائے هستی ځی — تماشی خود پرستی ځی
چه خراب ئے د شراب وی — د محشر شور ئے کباب وی
په نصیب ئے جوشان خم کړه — په تشریب ئے تمام ګم کړه
ما په هسے څه عاشق کړه — په دا عاشق کښے ئے صادق کړه
چه مشهور په بے نظیر دے — دلربا او دلپذیر دے
هغه شور د عشق له شوره — چه د خپل شورش له زوره
نه شی ځائے په بحر و بر کښے — او که ځائے زما په سر کښے
هسے شور یو سم وکور ته — چه حیرت وی ځا شور ته
دلوئے حشر علامت شی — په برزخ کښے قیامت شی



# د پښتو د شعر حسب حال

د پښتو ژبه تمامه — ده بے نظم و بے نظامه
له اوزانه مختلفه — له میزانه منحرفه
په میزان باندے چه راشی — هر کلام ته و بالا شی
چه په دا ژبه ګویا دی — د دے فن سخن سرا دی
که عالم دی یا جاهل دی — که ناقص دی که کامل دی
چه اشعار وته ئے ګورے — خو د زما ترشره پورے
جوړ د نثر عبارات دی — مسجع په فقرات دی
هر کلام ئے ناموزون دے — په نقصان ئے دا قانون دے
حواله چه په تقطیع شی — ګهے طعن ګاه تشنیع شی
د کلام چه وزن نه وی — پرے د نظم اطلاق څه وی
حقیقت ئے معطل وی — د مجاز ئے مرتجل وی
په دا هومره درد سر کښے — په دا ډیر خون جګر کښے
آراسته په قانون نه شه — کالموزون شه موزون نه شه
چه ممتاز د دے ګروه دی — د دے ساز په آواز پوه دے
تند فرس چه څخو نکو شی — پرے پوهیږی دانا ګو شی
قباحت پکښے لوئے دا دے — و دانا ته هویدا دے

چه سړه له دے نقصا نه　　دا چار او گنړی آسانه
هر قایل پرے اقدام و کا　　په دا فن کښے کلام و کا
د پښتو شعر ذلیل شهٔ　　کړ هر چا قول دلیل شهٔ
پښتانه چه شعراء دی　　له دے طرزه معرّا دی
چه په لافو د اشعار دی　　په معنی کا اشعار عار دی
ناواقف د سلیقے دی　　نابلد د طریقے دی
د هر وزن منافی دی　　خهٔ خبر په قوافی دی
د اشعار له صنایع نه　　د گفتار له بدایع نه
چه د نظم تصنیف کاندی　　رعایت د ردیف کاندی
عندلیب والی وځانته　　راشی دے زیبا بستان ته
نشیمن لے دا رنگ باغ شی　　هم آهنگ د سیه زاغ شی
گل پریشان کا له آهنگه　　بیا غنچه کاندی دل تنگه
په دا هو مره پښتنو کښے　　بیا په ژبه د پښتو کښے
په دا فن کښے څو اشخاص دی　　چه په نزد د خرد خاص دی
چه خوش گوئی و هم دان دی　　دیر نمونه د خاندان دی
لکه مرزا، دولت، واصل هم　　بنهٔ کلام لری حاصل هم
هر هغه چه نا مشهور دی　　جوړ په داب و په دستور دی
دا و دیل په احتمال کړم　　اعتراف لے د کمال کړم
د پښتو شعر معلوم دی　　په معنی کښے کا لمخدوم دی



چه قلم په لاس د خان شهٔ　　مرتب لے لوئے دیوان شهٔ
تصانیف لے فراوان شول　　مستند د درست افغان شول
سلاست و عبارات هم　　لطافت و اشارات هم
دیر دقت د معانی هم　　بلکه خود همه دانی هم
په کلام کښے لے ظاهره　　په اقلام کښے لے باهره
سلیقه لے کړه عیا نه　　طریقه لے کړه بیا نه
هر شاعر چه د افغان دے　　ریزه چین د خان د خوان دے
فی المثل که بل مهتاب دے　　مستفید د دے آفتاب دے
چه په عز و نوشی لا ارصافه　　قافله د روحی ترقافه
چه وی پل په دریا باندی　　څوک به غم د شنا کاندی
له حسده که صاف زړه کړے　　په دا کار کښے انصاف و کړے
خان ممتاز د تمام روه دے　　بل استاذ د دے گروه دے
په میدان د ممتازا نو　　هم عنان د برق تازا نو
سوائے مطلع دے آفتاب دے　　په عالم لے هر ځائے تاب دے
پکښے هیے شان نکات دی　　چه نازک لکه ذرات دی
په رنگین خیال رنگین دی　　سر تر پایه گل زمین دی
دا قطعه د گل انشا نه　　رنگینه تر بدخشا نه
که انصاف کړے قابل خیز دے　　دا بهار عنادل خیز دے
هم بنهٔ آب و بنهٔ هوا شته　　بلبلا ن لے خوش نوا شته

هر بلبل ئې خوش آهنګ کې
د خيال ګل ئې رنګا رنګ دی
کۀ ئې بچ يا ئې بړد دی
کۀ ئې سمه يا ئې غر دی
کۀ ئې باغ يا ئې صحرا دہ
کۀ ئې خار يا ئې خارا دہ
کۀ ئې کرک يا ئې آهو دی
کۀ ئې بوم يا ئې تيهو دی
کۀ ئې وزيا ئې پلنګ دی
ګربوه يا ئې ګړنګ دی
کۀ ئې ميږه يا ئې ښکار دی
کۀ ئې سيری يا ئې پيکار دی
هر نفس زما په ياد دی
کم په دم زما اوراد دی
دا کلام د دانشمند دی
کۀ ئې واوره دلپسند دی
د وطن مينه لې جانه !
راپيدا ده له ايمانه
په حرمت د پاک احمد و
صلوٰة بانډ سرمد و
هم په آل هم په اصحاب ئې
په پير وک پاک جناب ئې
نۀ يوځل په څو کرته
بلکه زر دره مرته
څو ګردان وی دا سپهر
درخشان وی ماه و مهر
څو چمن د بهاران وی
انجمن وښۀ ياران وی
څو باده جام وساقی وی
څو نشه خمار باقی وی
څو خام وی د تدرو
په قيام وی د باغ سرو
څو فقره درې سپنج وی
څو نکته اڅ نکته سنج وی
ترهه د سراځي ودان وی
هم د جوهر دا خاندان وی
بې خبره بيا مو دونې
پکښې اوسه روز افزونې



ګلستان ئې خورم اوسه
بلبلان ئې بې غم اوسه
پرې ګذر د خزان مۀ شه
عندليب ئې نالان مۀ شه
د باګرام خطه دلکشه
د بهار د خاطر خوشه
چه راځي کلی په کلی
په باګرام تر ديره ملی
دا د روه قطعه تمامه
کله رسی تر باګرامه
سرتر پايه رنګ آميزه
رنګينه خيال انګيزه دی
په بهار کښې ئې د ګلو
نعرې اورم د بلبلو
بلبلان ئې خوش تقرير دی
د طوطيانو هم صفير دی
په ديار د تمام روه کښې
په دا تام په دا کروه کښې
يو په سراځي زبان آور دی
دويم ځائې ئې پښاور دی
څو خاکی څو آتشی وی
تواضع وسرکشی وی
څو دا کاخ دل افروز وی
په کښې دا جشن ونوروز وی
ترهغه پورې باګرامه
په جهان مۀ شې بدنامه
ما چه دا کلام ادا کړ
نوې طرزې راپيدا کړ
په پښتو کښې ګويا خاص يم
سزاوار د اختصاص يم
چه په لاس د خان قلم وو
قلمرو ئې دا عالم وو
هغه وخت کۀ دا سواد وی
په کاغذ بويه چهپاد وی
چه مهمند وقيل وقال کړ
يعنی دوئې سحر حلال کړ
څو ئې سطر د انشا دی
په دا سحر اژدها دی

کۀ عصا ے دا خامه وے　　تاکتلی کمارنامه وے
چه خۀ کاری بیضا کا　　هغه کله نور اعضا کا
ادب کله د فضول وی　　په طاعات کله معمول وی
کۀ ګمان د په فضول وی　　په فضول ے کال مجمول وی
چه زما خۀ قیل وقال دے　　خو د زما په کمال دال دے
په دا شرط کۀ سخن رس وی　　زۀ معذور یم کۀ ناکس وی
د ګفتار په میدان راغلم　　جور په ساز وسامان راغلم
پکښے پروت د معنی ګوئے دے　　چه چوګان ئے کفت وګوئے دے
هغه کس کۀ بکران تاز وی　　باهوس وچوګان باز وی
زر د راشی ترمیدانه　　داګوئے خۀ رنګ وړی له مابه
هنرمند یم چه ځان ستایم　　کۀ په فن کښے بے همتا یم
مناسب د تقریب دا شوه　　چه ے طبع خود ستاشه
سخنور طوطیان کۀ ویر دی　　کله دوئی زما په خیر
چه ادا شیرین نفس کړم　　نیشکر چوب د تعفس کړم
چه لب وا لکه صدف کړم　　ډک په دُرو هر طرف کړم
دا رنګین خیال ے په کښلو　　قلم سنباخ کا د سرو ګلو
تر آفتاب ے روشن راکے دے　　تو فلک رفعت ګرانے دے
چه قاصد د ترفع شی　　فلک خم په تواضع شی
لا ترنمره انور برلښی　　ورته ستر که د غم برلښی



معانی ے دیرغوا دی　　له نقصانه مبرا دی
هکی صاف ور سنګینے　　لکه آب د یاقوت وینے
هر مضمون ے طبع زاد دے　　کل زما د رائے ایجاد دے
نۀ غلط نۀ مبتذل دے　　توارد ئے محتمل دے
ګیله مند یم له حاسده　　بنۀ متاع کاندي کاسده
انګبین سکنجبین کا　　په مزه ئے ترش جبین کا
وائی خس وکهکشان ته　　سنګ ولعل بدخشان ته
د حاسد دخل بے ځا یه　　صفائی یوسی له دا یه
تند نفس په چراغ خۀ کا　　خو رڼائے کاندی وُرکه
په هراس یم له ناپوهه　　قوی طبع کا ستوهه
چه نظرئے په اشعار شی　　هر یو شعر خوار وزار شی
نامرغوب ئے هر هنر شوا　　په عیوب ئے معبر کا
چه مذاق ئے د وابنۀ وی　　ورته حُسن ئے طوابنۀ وی
میز چه د جوار وی　　دربه خۀ کا کۀ شهوار وی
بے قیمته هغه دُر شی　　چه په لاس د ساده ور شی
چه تعجیل کاندی په لوستو　　ورته پوښی وراند وروستو
کۀ خوانده کۀ ناخوانده وی　　په هغه کښے وا مانده وی
افاده د کۀ الفاظ دی　　مقتضی د ډیر لحاظ دی
چه نازک د چا خیال وی　　هم بلند لکه هلال وی

بنه رنګين و شيرين تر وي
په مانند د ګل شکر وي

تأمل پکښې ضرور شي
لږ پسه پرې مسرور شي

که صحرا کلو ګلزار دے
آهسته خرام پکار دے

په خرام کښې تند آره شي
رنګارنګ بهار ښکاره شي

که جولان په خيابان کړے
خيابان به بيابان کړے

چه لقمه نغاړي بے شخونده
بهره نه لري له خونده

په نغړ دوے خه خو وار کړه
خُله عادت نه په نشخوار کړه

چه هلال ته لکه ستوري
دي په غټو سترګو ګوري

په رويت ئے مسرور تر شي
په مهلت ئے ندا اختر شي

چه ماهر وي په دا فن کښې
هم غائر وي په سخن کښې

مقاصد ئے د منصف وي
نه حاسد، نه متعسف وي

تر هغه ے سلام يو سه
ورسره دا کلام يو سه

ورته ادوايه تيز هوشه
د دانا سخن نيو شه

په اشعار ے نظر وکړه
وار په وار پرې ګذر وکړه

که واقع پکښې خطا وي
توجه يې ورته ستا وي

ته ئے جوړ لفظ و مضمون کړه
ما په دا احسان ممنون کړه

خطا کيږي له بشره
خصوصًا له سخنوره

که کلام د انوري وي
چه مدام سخنوري وي

له خطا کله خالي وي
هر مضمون کله عالي وي



که نکات ے عجائب وي
عبارات ے غرائب وي

خاص په حسن د کلام وي
د معنی دقت ئے عام وي

خالي به دي له صنعته
عاري نه دي له رفعته

لږه پسه هندارمغزه
دا نسخه د بوله نغزه

خيالات ے رنګين بوله
مقالات ے شيرين بوله

په لوستله ئے ابتهاج کړه
آفرين ے په مزاج کړه

که ے لپي له استقا له
واخلے حظ له قيل و قاله

په حالت د انابت کښې
په ساعت د اجابت کښې

ما عاصي په خاطر ياد کړه
بيا ے روح په دعا ښاد کړه

چه ئے طبعه وي سليمه
صد موهي له کريمه

---

# غزلیات

## (الف)

الهی دَ محبت درد و فغان را — په معصوم کنار دَ نور غونډې جانان را
چه مژګان یې دَ جوهر حکم پیدا کا — هر نفس لکه مرآت حیران چشمان را
ماله درد دَ غنچې په شان اوده کړه — دَ پهلو ته یې بستر دَ خارستان را
چه خپل برګ په آب دَ چرخ نکړي سرسبز — دَ همت علو په شان دَ کهکشان را
چه مدام وي په چشمه دَ آفتاب وَلې — دَ سحر په شان همت عرسپین دامان را
چه کباب یې په ګرمۍ زما ځګر شي — لاله غونډې په جام مې جوشان را
چه خالي نه وي یو دم له جوش خونه — زخمي زړه لکه غنچه په تیر پیکان را

ما شیدا کړه دَ یثرب له جارو کښو
دَ تدفین وته یې خاک پاک آستان را

نزاکت یې دَ مزاج بلا بر پ کا — چین یې څکه په جبین کمر پیدا کا
و منزل ته دَ محفل په تعجیل رسي — چه له خپلې لارې سنګ له مینا کا
مګر پوره یې درست بازار دَ مینه لعلونو — چه یې ګرم هره ورځ په خون بها کا
دَ حباب په روده یې سروي بې دماغه — چه نظر په عظم و شان دَ لوی دریا کا
درست صورت یې دَ غزال په شان دیده شي — ځوک چه بیم په خاطر یاد دَ صحرا کا
دَ دیوار پتیره خاک نقش و نګار وي — ځوک چه رنګ په حناطق دست و پا کا
چه سرور په مستعار کا شیدا داوره — دَ دهقان په دانه رقص دَ آسیا کا



سره جمع صاف دلان دین و دنیا کا — لکه تیغ په یوه ځائې دم و صفا کا
دَ هر چا چه منور دَ بخت کوکب وي — انجذاب یې کهکشان په کهربا کا
چه طلب کاندی باده مستان دَ جزم — دَ ساقي سترګې نشه یې دوبالا کا
دَ مظلوم په قتل ستا دَ بیداد غشي — آلواته له دې سروره په هوا کا
چه دَ زړه وینې مې جوش وهي له سترګو — هر بانړه مې لکه خار دَ کربلا کا
هیڅ ناله نشته دَ ګل په سرو لښو کښې — عندلیب په چغو سر ولې غوغا کا
ما شسته کړه شمع وار په دیوا دیښو — پیچیده نامه مې څه لره ځوک وا کا
دَ سرو وینو په باران سیل روان شي — چه و قتل ته اهري تورتو ملا کا

که له قدره یې شیدا خبر عنبر شي
ځان به ځار وړې دَ سر هند و بخارا کا

که سبکاره زما خاطر دَ لاله داغ کا — په ژړا به سترګې سرې دَ ګلو باغ کا
دَ حباب غونډې پر په آه و سرد کړه — ځوک ز ما په کوکښې بل څه رنګ چراغ کا
افروخته وي محفل په شان دَ شمع — چه سوخته دَ بل په کار کښې خپل دماغ کا
دَ ګردش نوبت یې هیڅ په ما رانه شي — که ساقي دَ زمانې فلک ایاغ کا

زنګ که هر کله شیدا دَ تیغ جوهر خوري
دَ ملس په بال به څه رنګ استفراغ کا

په څه شان کرم دا یه سبکل آستان دتا — تر آسمانه دې بلند ایوان دتا
چه بیا رنه شوې هرګز دَ نازله خوبه — مګر نه لوی سحر کا شان دتا
صبو بیا یې دَ محشر تر صبح بویه — کوره څه کالاس زما ګریوان دتا

چه غبار د ځ میدان لکه توروورد ے مګر اوسه په ګرمۍ عنان د تا
نه ځے هورے نه لے خورو ے آسمان سیرته آخر لشه نان چاشت په خوان د تا
څه اُمید د انتفاع کوے له مصره
شیدا نه لری یوسف کاروان د تا

نن فلک واخیست په سر افغان زما چه خبر شه لکه ماه تابان زما
خوښ یم زه لکه شفق نمک په زخم تر هغه چه کا علاج آسمان زما
رانه نه کا التفات غبار د لارے څوک به نیسی لکه برق عنان زما
په حاصل کښے سر بلندی په شان د شبنم په خونی لارے روان کاروان زما
دلداری د ناتوان زما عادت دے بار په دوش وریاد هر خس لوګان زما
زما رنګ د استعجال په بال پرواز کا په ګلبن دے لکه ګل آشیان زما
تهیه د اسپ و فیل وه بے حاصله پوبساط دے د شطرنج میدان زما
کوږے وا لکه کړه د تورو زلفو باریکی لری تمام دیوان زما
هیڅ قرارنه کا یو دم له تزلزله په جهان لکه ګردباد ایوان زما
د بهار له لاسه داغ لکه لاله یم ولے نه کا التفات خزان زما
تکلم ے په آله دے د دردو نو
شیدا نشته لکه نے زبان زما

په اداد تورو سترګو دلبری کا که د هند جادوګران جادوګری کا
برابر ورته کتے ناظران نه شی چه لباس لکه آفتاب هسے زری کا
رخشانی ئے د خندا نبات د لبو د خونریزته د عالم توره مصری کا



د چمن لمرقی ئے ولے ګردن خم کړه له آزاد سروه چه سروه همسری کا
په سنګین خاطر ئے غم د فرهاد لښته چه خندا په بے ستون کبک دری کا
څه په دا په سلیمان د جهان نه شی که حاصله مشت خس انګشتری کا
چه خالی ئے نه وی خوان له کرم نانه په جهان لکه خورشید به سروری کا
و تمیزته د آسمان څه خو نظر کړه په فولاد باندے کمان د جوهری کا
د صورت په قوت څه شی بے اسبابه په شبنم کښے کوم نهنګ شناوری کا
شیدا مه غواړه حیاله سخت رویا نو
څوک به یاره د ګوهر د آب ستری کا

وسیله چه ئے هما د بخت سهی کا د زوال سایه په کار کښے کوتهی کا
په بقا مومی طالب د فنا بحر د حباب قطره قالب په دم تهی کا
ستا فتنه له تا سره لکه آسمان ځی بد رقه به د څوک څه پاهمرهی کا
چه له اوره شی جدا اشر ووار و مری ستا سوخته په عافیت کښے جاندهی کا
په هوا وهی لاسونه له سروره په چمن کښے چه قمری سرو د سهی کا
د هغه اهل تازه په کمتر خیزوی په مایه د تورو خاورو باغ بهی کا
تل به نه وی د یار د اچشم پوشیه
شیدا څو به غنچه وار کم نګهی کا

له شفق سره آفتاب متمثل کا چه جلوه هغه طناز په رنګ محل کا
د آفتاب د چشمے آب د شفق رنګ دے چه تصویرته ے د تا مصور حل کا
ګیراڼی په هغه دم د رخسار کوره چه کاکل په خپل جوار کښے مسلسل کا

ګویا نو سترګو اب سوزان آتش وي  ګوره ابر او د برق په خرمن بل کا
زمانې هسې محتاج د حرکت کړم  ګویا خواب په ګمواره حما محمل کا
کږ روي د آسمان نه څې له کورې  که مهتاب ور ته روشن په شپه مشعل کا
د نرګس تر ګل ئې زیاته زیبائي وي  چه په سترګو کښې خندا اخما اجل کا
د شحلې زیست و مردن ګوره په باد وي  ولې ناز په خپل دولت اهل دول کا
سنګ د لارې ئې **شیدا** کوه قاف نه شو
نورې خوږ لکه آسمان کبوډ د رغل کا
ستا په سترګو کښې نانا رسیه کجل کا  بې اجله دم په دم کار د اجل کا
بیا حال د خپل رخسار تماشه ګوره  چه خونریز ته د عالم خط مشعل کا
نګاه اب نزسور خوشنما ستر شي  چه جلوه د هند سبزان په ګنګاجل کا
هر چه مات د زنګ لښکر کا سکندر شي  د خاطر جوهر صفا د سیجنجل کا
ګوري اثر د درد ناله په سختو زړونو  تل د رف په وهل چغ جلاجل کا
کشاده کړه د ګنج دد په سپینه زیره  ګدا هم په سحر وا دخونې جل کا
عنه دم کوي طامع کرم جو شي  چه شکم په طعام پر لکه مرجل کا
د دانا چشم پوشي د کار تند بیړدې  جال ته او ګوره اسیر په څه شان جل کا
نیک و بد **شیدا** په کار په خپل عمل شي
انا له د رنځ حنظل و سفرجل کا
مرده دل ئې د جمال تماشه کا  د مجنون تصویر ادا د لیلا څه کا؛
چه آشنا لکه غزال د میچانه وي  په منو سترګو اثر د وفا څه کا؛



د سورا سباب پکار د مهجور نشه  د دستار غنچه مقدم د صبا څه کا؛
چه پاره ئې ګریبان لکه سحر وي  تستر د حال را هسې رسوا څه کا؛
هرګز نه لري بهره له دست وپایه  د سمک عالم به زنګ د حنا څه کا؛
سپک په شان کړې د حباب تنګ ظرفیه  د تمکین ته د جوشش د دریا څه کا؛
د وفا طمع ئې مه کړه سکندره  ورته او ګوره دوران په دارا څه کا؛
په ستم ئې د تاختن تمام خراب کړه  د محمل ناقه ئې نور په صحرا څه کا؛
که پرواز لکه شهباز او کا هاله شي
ګیرائي د هغه دام به **شیدا** څه کا؛
که ساقي تلخه باده دریا ئې شور کا  د فلک په جام به مست کله عیتو کا
آراسته وي تل محفل د خنده رویو  زمانه به د ګل جام څه رنګ نسکور کا
چه لري لکه شانه هزار چوبو منه  بې افسونه به نیول د تور منګور کا
دل تنګي کړم لکه ګل په خندا ورکه  که مې باد د صبا بل په خونه اور کا
چه په سر ئې سبز آسمان زر ګار دستار کا  عاقبت ئې لکه شمع بیا سرتور کا
لکه ګل کړې ګران هار ستر دا منځي  باد ئې څه لکه غبار په کتف سور کا
چه اُمید په خپل صورت د وفا نشته
**شیدا** څوک د ځان آشنا یائې خسو کا
دا صحرا په نقشِ پا کړه ګل زمین چا  سربلند کړله خاقانه هر ګلچین چا
په کلام ئې مکر بند نالان بلبل دې  یو لباس په دا بهار نه کړه رنګین چا
چه د کوه په شان د تیغ په غاړه کیښود  بې له مانه به ورېدا زخم سنګین چا

دَ بې کس په ماتم کله چا نعرې کړې — څوک په مرګ دَ شمع وُلید غمګین چا
چه وتیغ ته ئې ګردن ږدی دی اله دوشه — بې شمع کړه معمول ځما آشین چا
څوک په زخم پلهر ږدی دَ بیکسانو — دَ یتیم او بنیکې کړې او چې په آسنین چا
دَ غنچې په شان به ګل شی ستړیا یه — که مدام دَ ګل بهار کړو دلنشین چا

چه په زعم دَ شیدا لکه نمر ګل شه
آویخته کړه دَ سرونیک په سپین جبین چا

نوې خط و په چمن دَ رخسار زیب کا — که بعد په تازه ګل دَ بهار زیب کا
نعشرت په عالم نن دَ مهتاب شپه ده — چه کاکل دو په سپین مخ تار په تار زیب کا
سرکشی ئې جهان سوځې لېږې وینم — دَ مغیش طره که ستا په ستار زیب کا
چه ردې ګرم نګاه په تیغ شهید وی — دَ لاله غونډې ئې داغ په پوهار زیب کا
دَ بهار په دودیکن ئې دَ دامن شو — چه په سیر د هر دشت و کهسار زیب کا
مکرتادې آرایش دَ جمال کړې — دَ تمام شهر نن در و دیوار زیب کا

شیدا هار دَ شهوار دُرې سُفته شوې
که په ژبه دَ تحسین دَ ګفتار زیب کا؛

په رباب به څه رنګ ترشی کام زما — چه نسکور لکه حباب دې جام زما
دنګین عالم خبرور ځې [illegible] وې — هسې ورک شه ستا په غم کښې نام زما
دَ لاغر صیدله شرمه هسې آب شه — چه سر سبزه کړه با نه ګلدام زما
دَ ذرې په شان ئې تاب دَ آفتاب سوزی — هیڅ سبب دَ راحت نه شه بام زما
صبح و شام ئې کړه هم رنګ سیه روزئې — ځکه نه لری هیڅ صبح، شام زما



دَ سیماب په شان ئې نه موم بې مرګه — دَ حیات له لاسه ورک آرام زما
ستا دَ مینې رازې هسې پوشیده کړه — چه په ما نه شه خبر سلام زما

په ګلشن دَ شیدا بیا پرتو دَ صبح
که په سپین لباس کا زیب ګلفام زما

عاشقی دَ روه مینو صورت یو کا — مرګ دَ شمعې دَ شعلې صحبت یو کا
بوالهوسی قوی بازو چه قامت خم شی — دَ کمان په شان خپل ضعف و قوت یو کا
له خاطره ئې امساک دَ بو مې نه ځی — که حاتم سره علو دَ همت سځ کا
په صفت لې دَ آبرو ملنده طبع — دَ مضمون دقت دَ ماه نزاکت یو کا
نتیجه لې دَ صحبت خس و خاشاک وی — له ساحل سره چه موج صحبت یو کا
که روزی شی استغنا دَ افتاده وو — له آسمان سره به خاورې رفعت یو کا

هغه دم چه اِرتکاب په ستم او کا
زمانه به شیدا رنج و راحت یو کا

ستا ګلګون به ولې عزم دَ میدان کا — په دیده مې دَ ګردش لکه مژګان کا
که عصا لکه نرګس دَ پیرئ واخلی — عاشقان به کله بند وړې چشمان کا
پس له مرګه وی ناله دَ سینه چاکو — بې نفسه دَ جرس غونډې فغان کا
دَ نمرا ووځې په سربل په فریاد غږونه — دا سنګدل مګر ستم په دروستهان کا
دَ اصلاح تمه لې نمک کوځی په خیال کښې — هر خاطر چه دَ کباب غونډې بریان کا
تیرماری دَ هغو لفولو ئې آفت دې — چه حلقې دَ عالم ته په کمان کا
چه نفس زما دَ آه سرکشی او کا — فلک لاندې خپله شمع تر دامان کا

دَحباب پہ شان ئے نرۀ نمایان نۀ شی    چہ سینہ لہ دردہ چاکہ بیدلان کا
وَمحبت وَنہ ضرور مناسبت دے    سنبل ځکہ پہ سروِ گلو پریشان کا
هر مضمون ئے مُهَندل پہ شان نَغے دے    گویائی چہ دَمعنی توطی دستان کا

تل پہ خپلہ شیشہ مست لکہ غنچہ یم
ځۀ بہ یاد پہ ما **شیدا** پیرِ مغان کا

پہ آفتاب کښے سیر ولے جانانہ کا    دَپیری سایہ وَکړے دیوانہ کا
شب داج بہ ئے مهتاب کا ستا دَزلفو    دَآفتاب پنجہ کۀ ځان دَعاج شانہ کا
پہ شبانیت بو لہ بنا دَعاشقئ    کۀ والہ دَفلک شمع پروانہ کا
وازہ خُلمے لکہ دُرشی خالی پاتے    چہ حاصل ئے بے نصیب آب و دانہ کا
پہ کاشان دَدنیا اسباب توکل نشتہ    دَمخمل عالم ئے خواب پہ افسانہ کا
چہ تعمیر ئے دبنا پہ آسیا سنگ شی    دم پہ دم پہ غم دَآب صاحب خانہ کا

**شیدا** کلہ شۀ آسمان آشنا دَخلقو
څوک بہ خپلہ داسبزۀ بیگانہ کا

تار پہ تار چہ پہ سپین مخ مشکین گیسو کا    راتہ یاد دَچارچمن گل شب بو کا
آراستہ جمال ئے دولت مچین تصویر شی    توری زلفے چہ قلم دَمشکین مو کا
نۀ بلبل دَهغہ باغ یم با ور اوکړہ    چہ نرگس ئے دم چشمی دَشوخ آهو کا
عندلیب کښہ معذور پہ بد مستئ کښے    دَغنچے شیشہ کاروَنہ کۀ سبو کا
تسلی ئے دَنمک پہ سوز او نۀ شوہ    دَکباب زخم هنوز دا او دَآرزو کا
لکہ گل پہ دا بهار کښے رسوا کړم    دریں گریوان کۀ څوک زار و فو کا



نۀ شی هیڅ د برق لمبہ زیاتہ یا کہ    کہ باران پہ شیبہ او دَعا بادے پو کا

کۀ پہ شان دَآئینے ئے لذت داخلی
سر بہ کلہ **شیدا** پورتہ لہ زانو کا

هر ناظر چہ ننداره ستا دَرخسار کا    ستا صورت پہ نرۀ کښے خانۂ آئینہ دار کا
یو دم پورتہ کړہ چشمان دَنازلہ خوابہ    ستا دَسترگو پہ شان خوب کلہ بیمار کا
مرغلرے ئے لیدۀ دَسرۀ پیروان شی    کۀ ئے لب لہ دیرہ نازہ کم گفتار کا
آزادہ لکہ آفتاب پہ تنهائی کښے    پہ فقدان دَمشتری گرم بازار کا
دَصورت پہ شان غافل شی لہ آفتابہ    ناکسان چہ سر پہ سیوری دَدیوار کا
هیڅ غنچہ دَگلونۀ دہ سارہ د لہ    اعتماد بہ پہ بقا دَنوبهار کا
دَتحریق تہ ئے حاجت دَخاشاک نۀ وی    چہ سوخته ئے لکہ شمع خپل نار کا

تل ئے بیم کوی **شیدا** لہ دورنگئ
خپل لیمۀ کۀ دَعالم لیل و نهار کا

څوک بہ څۀ پہ چا احسان لکہ سیلاب کا    پہ مایہ دَسیند خلاف دَسیند کړوب کا
لاشہ اوکورہ کمال دَستارو ئے    پہ ضیا دَآفتاب ستر دَشهاب کا
نمایان پہ خاص و عام لکہ ذرہ شی    چہ نظر پہ کم ولوئے لکہ آفتاب کا
دَحباب پہ شان تمام لہ شرمہ آب شی    کۀ ئے لرے چرے باد دَمخ نقاب کا
نادانی کښوہ غفلت دَرهرها نو    لکہ طفل دَنا نکو پہ تلہ کښے خواب کا
دستگیری دَلاهو خس کړہ تر ساحلہ    کۀ آسمان دموج آسا پہ آب و تاب کا
زمانہ ئے **شیدا** ابل کا او رپہ خونہ    چہ ممتاز لکہ سحر پہ فتح باب کا

په سپين مخ نې کوزې لفرې پيچ و تاب کا — که هاله جلوه په نور کښې دَ مهتاب کا
په چمن چه دَ سنبل لُست طيل نوازشي — دَ کلو نو رنګ پرواز لکه سرخاب کا
که په دا قامت ورود په بستان وکړې — نوارې غوټۍ په سرو خجلت آب کا
ستا له ستر کو نې اُميد دَ نګاه نشته — بيا دا هسې بيمار څه کښې دَ ناز خواب کا
دماره ګوګې لې مجنون شول نظر کړه — چه مرور زما دَ ستر ګو په رباب کا
که وا سپنه دَ کهکشان نيسي په خُله کښې — دَ آسمان فتنه به دير عالم خراب کا
لکه څه په رنګ کښې دبرينې بيانه وي — ستا په تنګه خُله کښې غابښ هسې کتاب کا

دا غزل دَ **شيدا** نذر يوسه له هنده
چه ياران نې د وطن څه رنګ جواب کا

څه رنګ داشي په نظر آيه دِ تا — ويني څوک لکه پرې سايه دِ تا
خوابيده فتنه لې اوليده ناګاه — چه په مهد کړه نظر دا سيه دِ تا
غم به هيڅ دَ پريوتو ور سره نه وي — که شي پسته لکه خاک پايه دِ تا
تورې خاګرې لې په سر شوې تمام عمر — مه شه دفن لکه ګنج مايه دِ تا

---

دَ رقيب په څنګ کښې يار عاشقان څه کا — دَ طاؤس ګل وګلزار بلبلان څه کا
دَ مجنون شورش مې بيا په سر تازه شه — دَ صحرا په خاطر څه کا زندان څه کا
شکايت لې هر زبان کړه، وايه، وې — ته رفعت غوارې له نکه آسمان څه کا
ستا صمصام څه رنګ مشغول په خونريزه دې — تيغ کوه دَ بدخشان په هر آن څه کا
له قميص سره نې تن لکه حباب څي — کم مايه عالم به داد په عريان څه کا



دَ مثال عالم لې او کوره، تصوير دې — په هغه چه کور لحد شي جهان څه کا
بار محيط دَ دريه سنګ، په سترونه څخت — له سخت رويه سره وايه انسان څه کا

دَ سطور په توره شپه وايه مشعل دې
دَ **شيدا** رنګين مضمون په ديوان څه کا

# ب

چه ريخته کا دا زما چشمان تر آب — لکه بحر شي دا درست جهان بر آب
په هوا کښې دِ قصور دَ پرواز نه کړم — که مې شي لکه سحاب بال و پر آب
دَ آفتاب چشمه لې مه بوله نادانه — ستا رخسار په انفعال کړ اخګر آب
په دولت شوم ساته شي راشه ګوره — هرګز نه لري ثمري دَ ګوهر آب
لکه موج بې قرار کړم خپلوا دنبو — چه مې لاندې تر پهلو شه بستر آب
زمانې خسان بالا کړه تر کسانو — چه دَ خس ته فرو کړې دې سر آب
لره مې سور دَ شعله رو په ديدن نه شه — که په شان دې شته دَ شمع جګر آب

**شيدا** خپله چاره ويني په او بو کښې
که نن واخست دِ تا نوي خنجر آب

حلاوت شه په عالم کښې لبس عجب — په شکر باندې شي ليد مګس عجب
ګرمي هسې دَ صحبت ولاړه له خلقه — چه له اور سره سنګاره شي خس عجب
سو بالا کړه لکه ګرد نر کړه غافله! — نن فرياد کا په دا لا جرس عجب
بلندي لې دَ حباب په شان يو دم ده — څه آماس لري دَ سر ناکس عجب
له تيزۍ لې هيڅ غبار دَ جولان نشته — لکه څرخ لري کبود فرس عجب

دَ سبب له پرده دُونه شیدا کوره
بے حائله دَ گرداب تنفس عجب

## ث

ایوان څه کوے په دا سپنج عبث — درِ دِ سر وا ره ضائع دے رنج عبث
دَ دُنیا قحبه هیش مردار کوزی — فریفته ئے شوے په ناز و غنج عبث
نه ئے خوړه نه ئے خوردی خاوری ته قوشی — څوک چه جمع لکه مار کا گنج عبث
خوبه جوړے وی دریٔ مشکین خالونه — یا لباس زعفرانی دَ جنج عبث
عاقبت به دوے نرد بازی بلخته شی — چار و دو لرے عاتل شش پنج عبث
تک وتاز بویه شیدا پهلو یه کښته
شاطری کوے په دا شطرنج عبث

## ج

په طلب کښے کرے حاصل یکران دَ موج — په میدان کره دَ سیلاب جولان دَ موج
لوتن لکه صدف گوهر حاصل کړه — متاع نه لری دَ دُر کاروان دَ موج
ز دور وری دی اُفتاده تو گردن کشو — تل په بند وی دَ دریاب گردان دَ موج
سرکښان دی مسخر دَ خاکسارانو — زمین بوس وی دَ ساحل طوفان دَ موج
کوره کوم ساعت ئے نفاری تورخاؤرے — دَا و بو په تخت روان شا[illegible] دَ موج
تکلیف مه کوه دَ کار وناړسا ته — په هدف شی دَ آب گیر په [illegible] موج
مضرت دَ شکسته په ځان نافع شی — تل په سیل وی قایم بنیاد نه موج
آفت دَ خیز دیے دُنیا دے شیدا کوره — دَم په دَم زیر وزبر جهان دَ موج



## ح

خوچه راشی په حرم دَ دُنیا صُبح — سفر کښے سترکا هغه دم په ژړا صبح
سپین لباس به ئے سیاه کاما تمونه — دَ غفلت په مقتضا خود آرا صبح
استهزائے په غفلت دَ خوابیده وی — لا دَ وړا یه چه را ځی په خندا صبح
چه شکاره په سبکلی مخ دَ خط سبزه شی — دمیده شی په عالم کښے گویا صبح
نه تیریږی هرگز شپه په مهجورانو — مُبتلا ده مکرنن په بلا صبح
اَرمانونه دَ عدم کا آفتاب نه دے
دَ وجود له لاسه داغ ده شیدا صُبح

## خ

دَ فتنو په اَحداث و خور آسمان څرخ — که وهی زرین لباسه سبزان څرخ
په گردش دَ چشم سل فتنے برپا کا — دَ خونریزته دے پیدا دَ فسان څرخ
همیشه لکه رِشته هسے په دوک وی — چه گردش او کا دَ چا په سامان څرخ
دَ گرداب قطره به زر دَ څرخ شور شی — فتنه هسے کره برپا په دوران څرخ
احتیاط ئے کړه شیدا له رقا صئی
ویے شمع کاندی گُل په دامان څرخ

## ذ

مبدل په دا خشک نان کره تر لذیذ — دَ نظره شی په خوان اکثر لذیذ
هسے ورک شه حلاوت له دے عالمه — چه موندَه نه شی اصلا شکر لذیذ
سر دَ سرودے فِروله اِنفعاله — چه ئے ورنکړو چا ته بر لذیذ

سنګ وچوب به ثمر اوخوري لکه ونه — چه ممسک نۀ خوري دا خپل ثمر لذيذ

شيدا زيست په تور وخاؤ روبکه مارکړه
مزعفر مۀ خوره دَ دُون پهدر لذيذ

ر

کۀ چن کا دَ بياض ګل زمين شعر — هله او بوله شايان دَ تحسين شعر
په ژړا دَ قلم تور ليمۀ اوبۀ شول — چه رقم کړ ستا په غم کښے حزين شعر
په بياض دے دَ مخ سو سطر دَ اوښکو — لکه وي ابحر کامل درنګين شعر
دَ بجور سطور دے موج دَ عسل شي — په صفت کښے ستا دَ لبو شيرين شعر

تلون دَ خپل مزاج هردم خيال کړه
په شيدا نۀ شي دِ تا دَ آئين شحر

کۀ چشمه لري دَ اوښکو بل ګريبان غر — يا سيلاب کا په ژړا ژړا روان غر
له قطرے به ئے هرګز برابر نۀ شي — چه په وينو کا ژړا دَ بدخشان غر
سختي کله دَ عالم په اضطراب ځي — ولے کاندي دم په دم ناله افغان غر
ترقدم لاندِ ئے سر په ادب کيږدي — چه قاصد بے لارے نۀ شي خرامان غر
نۀ په کوم جِسم و قوّت ملاست ئے بے غمه — چه له بيمه دَ ولاړ په خپل مکان غر
ورښکاره دَ بُت في الحال زيبا جمال شي — چه په زړۀ او خوري غوټه نمايان غر

ستا په غم کښے به پاره ووتر لمنے
بارے نۀ لري ژړا دَ ګريبان غر



ړ

ستا مهجور له دَرده آه فغان کړ — کۀ وينڅلي طوطي چيغ په هندوستان کړ
پيراهن را باندَ ئے تر لکه حباب شۀ — خپلو سترګو چه په ما باندِ باران کړ
دَ سيلاب په يقين عين ويرانه وه — چه ګذر ئے نن زما په خان ومان کړ
ورته اوګوره سايه دَ مهتاب ئي ده — کۀ ئے خط له سپينه مخه نمايان کړ

شيدا درست په لادوا دردو نوهک ے
ما چه بيرته لکه زخم ستا ديوان کړ

په ميدان ئے دَ فتنو کلکون مهيز کړ — چه حيران ئے دَ فلک تازيان شبديز کړ
دَ شيرينے نوم په خُله کله غوک اخلي — نمکين حُسن دِ خۀ رنګ شور انګيز کړ
دَ خونريز په وَقت دَ زړۀ وي هغه کاتري — چه جلاد باندے دَ قتل خنجر تيز کړ
دَ خوږو لبو چه تريخ کلام اوباسے — دَ نبات شربت دِ واړه زهر آميز کړ
احتياج دَ محتاج ورک بلند نظر کا — دَ آفتاب له چشمے جام مهتاب لبريز کړ
مګر عيد دَ قربانۍ ئے نزدے را غے — چه په ما پسے تلاش زما خونريز کړ

په دا شکر چه دِ تا بيا روستر ګو
دَ شيدا په وينومات دَ رنځ پرهيز کړ

بيا دِ ولے په ليندۀ آغزين تير کړ — په سرو وينو دِ ګرداب ښاخ زۀ ګير کړ
دحنا درنګ ګناه په دا کښے نۀ وه — دَ خونريزۀ ستا بے باکے پنجے خير کړ
ما په غوږ واورېدۀ فرياد دَ غزونو — ځائے په ځائے دَ ژړا په غم کښے فقير کړ
دَ بلبل په زړۀ ئے کيښول ګل داغونه — چه صياد ئے دَ سوخته سيے تدبير کړ

پہ عالم کښې ئے آسمان تہ حباب وائی
دَ شیدا صورت هجران پہ څو حقیر کړ

بوئیں پہ زلفو کښې زما ګلبدن راوړ    کہ پہ دام کښې ئے آهو دَ ختن راوړ
خاصیت لوے دَ ګل غنچہ دَ ها نہ    لیس لہ کالہ دِ څو ورځے دیدن راوړ
قطرات دَ اوښو تل پہ دامن جمع    پہ نصیب مے لکہ پرخہ کو پستن راوړ
چہ زما پہ آتشین آہ نرم نہ شہ    زړہ دِ سخت راتہ تو سنګ آهن وړ
شمع ځان تو مرګ پښو اثر اری عالمہ    فانوس پہ بہانہ ئے کفن راوړ
سرزنش بہ بیا دَ کوم شوپیدہ کاندی    دَ کهسار پہ دود سنګ دامن راوړ
دَ ماتم لباس سپین پہ بدن نہ شہ    ما دَ خاورو پہ شان تور پیرهن راوړ

نن شیدا لہ ځانہ سیړے لکہ شمع
ستا محفل تہ ئے بے سر ګردن راوړ

## ز

پہ ما مہ کوہ داد بے عتاب هرګز    پہ اور مہ سوزہ دَ عشق کباب هرګز
چہ بیدار شی پہ ایوان دَ نازلہ خوابہ    ستا تر بام نہ شہ بلند آفتاب هرګز
چادر برق پہ شعلہ ایښے فانوس اولید    تہ هم مہ نیسہ پہ مخ نقاب هرګز
چہ جولان ئے نہ دَ برق همعنانی کا    نیوے نہ شی ستا ګلګون رکاب هرګز
یم اوده لکہ غنچہ دَ خار لہ دردہ    خبر نہ شوم دَ راحت پہ خواب هرګز
سرکشی کاندِ مخ تو رد سرخرویانو    منعم مہ شہ دَ شعلے پہ داب هرګز
پوشیدہ ئے پہ پردہ خپلہ هیچی کړہ    نور څہ نہ لري مستور حباب هرګز



آخر حد دَ سنګدلئ دے لا څو کومہ
رحم نکړے دَ شیدا پہ باب هرګز

## س

نفع نہ کاندی غنچے دِ تا قفس    پرواز او ګورہ دَ رنګ او دا قفس
آشنائی دَ زندان هم بدہ بلا دہ    پہ سختئ بہ پریږدی دا طوطا قفس
پکښے بند وم لکہ باد لہ نا توانیہ    کہ ضیاد کاندی حباب زما قفس
کہ پہ ذرہ کښے مرغان ځائے کا پیدا هم شی    ځنے نہ مومی هرګز وفا قفس
چہ پہ سر کښے ئے تازہ دَ جنون شور شہ    ګلرو یني ګل بلبل نوا قفس

ډړکیدہ ئے دَ شیدا پہ نظر بهتر وو
ښہ چہ نہ ویني عنقا دَ چا قفس

## ښ

چہ غیرت ئے پیچو تاب پہ هر سو کښینښ    شانے ولے لاس دِ تا پہ ګیسو کښینښ
نہ دی ښکرے دَ آهو ښہ وتحیر شہ    ستا دَ سترګو شوخی داغ پہ آهو کښینښ
ګویا بوئی دَ یوہ خار پہ چمن نښتہ    تا دَ ګل پہ بستر هسے پہلو کښینښ
څومرہ نازکوے فلک پشب هلالہ    چہ لہ خیالہ ئے ګلاہ پہ آبرو کښینښ
چہ آتش پہ بیمارو سترګو کاندی    پہ شرابو ئے لقب دَ دارو کښینښ
پیچ وتاب ئے دَ حسرت دے جوهر نہ دے    تا چہ مخ وَتہ مرآت روبرو کښینښ

هغہ لاندے کړ شیدا جهان پہ فکر
چہ ئے سر لکہ آسمان پہ زانو کښینښ

## ض

که خونریز په تیز نګاه دے ستا غرض    شهادت دے ستا په دا زما غرض
چه نرګس په خواب او نهٔ لیدهٔ غزال م    ستا د سترګو ده هغه ادا غرض
د سراب موجے چین د صاحبین شی    که موقوف شی په خراب صحرا غرض
په حرج وی تل جرح د تنګدلا نو    په غنچه کا هر سحر صبا غرض
په ګوشه کښے مے آرام د خاطرهٔ شی    چیچاونهٔ کا په ما عنقا غرض

له اوله مستحضر د بارا افسون کړه
لغه پسه کړه په کنج شیدا غرض

## ط

په رخسار د جلوه ګرشه مشکین خط    که قاصد را ورېو د روم ته د چین خط
په ذکا د طبیعت لولی ذیرک    تل په شان د الف بے د جبین خط
لطافت ستا د صورت نقش بر آب کړ    تل به نهٔ وی ستا د مخ په نسرین خط
که زړهٔ او چاوهٔ قلم د مانی خهٔ شو    رقم نهٔ شهٔ ستا د خط په آئین خط
تور اثر ورد ے په نسبت د همت هسے    لکه او کاندی موران په زمین خط
زمانه په دا نیمل له اندهه زړه کړه    چه سحرئے په رخسار راغے سپین خط

شیدا میل د طوطی په شکر وینم
که سبزے را وړیهٔ د لب په تزئین خط

## ظ

په دا وقت نشته د هیڅ فتح باب حظ    بسته دړلوی آرام اجتناب حظ



خوله نهٔ وی د ماد دولت د کوروا کړے    نو هغه په جمع دل کا حباب حظ
په ځګر به د هیش اینبے څیکر وی    که حاصل لکه کباب کړے دنا ب حظ
تموریے کړم د آن په څوا لوانه    نو جلوه ئے دے بسیار د نقاب حظ
له نیلی رواقه تل ستوری پریوزی    خوبه کا د بلند قصر ارباب حظ
آب به څهٔ کا د حیوان ذره جان سوزه    همیشه کا په چشمه د آفتاب حظ
کل مایه ورکړه د هوش په بے هوشئی    په خوغا دے ورکړه د خوب حظ

ساقی یار سوخته شیدا کړه په محفل کښے
د مستئی دمهٔ شه هیر د کباب حظ

## ع

داشه واوره د شوکت[1] هره مصرع    درست غزل ئے منتخب الی مقطع
چه نظر ئے په شفق د رنګینئی کړم    هر کلام ئے په مثال حسن مطلع
بلندی ئے د اشعار فلک سیاره    ذ په وین په رودے نظم مرصع
په کمال ئے د خیال نظم دستور یو    څهٔ معنی چه معنانهٔ وی مسجع
تعجب به په دا باب هر ګوره او کړم    که د رسمی کلام ئے نهٔ وی مصنع

رسیده ئے د مضمون ته شیدا ګران دی
چه رفیع لکه آسمان دے بل ارفع

د زبان ګرم جوشی د ه پرے کړه طمع    وینے سپینے د عالم شوے لکه شمع
عاقبت به د تنګ لاس په سرو شی    په دا باب لکه غنچه کړه خاطر جمع
کشتګان دنا د تیغ وارهٔ ژندهٔ متا    په خونریز کښے ئے ایجاد دے لکه رمه

[1] شوکت بخاری د فارسے شاعر۔ اد ګوری ص ۱۹۱ هم۔

لکه شمع د کافور هسې سرد مه شه    سرکشي چه ئې له آب سره کا لمع

غ

همیشه په وینو رنګ دی دِ تا تیغ    لکه سور وي هر ورځ د صبا تیغ
بې هنر په ډېر اسباب د هنر څه کا    خوراک نه کوي په آب د دریا تیغ
سره جمع د آفت آب و شعله دی    که عریان دې په میدان کښې د تا تیغ
د ګلشن په شان مې رنګ په کشتن شه    هسې یو ور تا په شان د صبا تیغ
مقتضی ئې د همت کهکشان بولي
که ایستلې دې آسمان په شیدا تیغ

ق

په هر ځائې کښې دي رسوا ارباب د عشق    پرده نه لري اصلاً ارباب د عشق
کوه قاف به د شبنم په شان مجذوب کا    که طالع ئې شي په سر آفتاب د عشق
دریته څه وایم د فتنې له موجه    د فلک سره وي سم حباب د عشق
تبدل ئې د لرزش په اطمینان وي    هغه ذره چه کا حاصل سیماب د عشق
خیال ئې نه دروي شیدا نماله د له
مالیدلې دې یو مخ په خواب د عشق

ک

څوک چه ځان کا د مشرق په شان مضحک    نمانشان خلعت هاله ورکا فلک
دِ جمعي لکه حباب په کوم اسباب کړې ؟    چه په باد بانډې ولاړ دې ستا کوشک
د هغه په حال نظر صاحب نظر کا    چه په سترګو کا خدمت لکه عینک



هم هغه ستان په لاس راشي د مات    چه کباب غوندې رک وي په نمک
د جسد په پرېښول خوښ سبک روح ئې    لکه پرېږدي یونس بطن د سمک
د دنیا دا هلا رطور مبدل کړه    مکلف ئې په حاصل کړه کار وانک
تنګول مکره هرګز د بنو مردانو    شهبازان کله لائق دي د مشتک
شیدا څه رنګ شي معلوم د آسمان غدر
څوک ئې شمس و قمر نه بندي په محک

چه اعجاز کاندي طناز خرام د کبک    د دا زي ئې شي د زلفو دام د کبک
انتها د مینې مه غواړه نادانه ؛    ټې به نه شي کوه قاف په کام د کبک
منفعل کړ په نو خط طرفه سبزا نو    څکه نشته په درست هند کښې نام د کبک
د قهقهه خنده به پرېږدي لکه صبح    که نصیب لکه غریب شي شام د کبک
په باده نه شو لبریز له کم ظرفیه    نور څه نه لري بې خط جام د کبک
تحمل ئې کا هر دم د سختئ طمع    که کهسار سره وي تل ناکام د کبک
زمانه غواړي شیدا له نادانیه
په منګول کښې د شهباز آرام د کبک

ل

په ناله کړ عندلیب نو بهار ګل    خله چه پرېښوه د غنچې په خپل خندا ګل
هرګز نه شو په اِحسـ د پسرلي منع    له صورته کړه پیدا د شمع تار ګل
سرسبزي ئې د بهار له آبه نه ده    په خپل زخم مرهم کېښوده زنګار ګل
ستا نه باغ خزان هسې د ور تر اوسه    چه شي بو ئې د چمن ستا په ستار ګل

شکسته شی لکه رنګ له نازکیه     که بستر کا درته جوړ د خپل کنار ګل

غلغله ئې په سودا او کا بلبلې     رخت چې وا کاندو نفس خپل بازار ګل

چې په شان د بوئې روان شول چمنه     معطل نه کړې په لار کښې د پا خار ګل

په تدفین به تورې خاورې د صحرا وو

سبا چې زر کړو **شیدا** اخر د خپل سر ګل

د حباب په شانې پوه شه په خلل     مکړه نقش په دا خپل ساره محل

همیشه به ئې په غم کښې سرګردان وی     که افسر لکه آسمان کړې مکلل

هسې شان دوې دکان په بازار شوې     څه عجب شوخواب له وضع د تحمل

د وحدت جلوه په زړه د مشرب څرکا     دیوه لیده محال دی په احول

ته د هر صورت له نقشه معنی غواړې     د رخسار خطونه نه وسینی مهمل

مکړه طمع د وفا له رنګ و بویه     چې پریشان شې که نه ګل ئې فی المثل

سنګینی ئې د زړه نه شی دردمند نه دی     چې فریاد کا په تقلید لکه جبل

لکه شمع د فانوس که په کفن شی     مرګ ئې نه وی چې ئې را نشی اجل

د لال په شان ئې تل جبین دا غلې     چې تیرې د کوې نه شی په مشعل

د مینې ئې له بازی کړه **شیدا** ویره

فلک نه دې په خپل کار کښې معطل

**م**

هسې رنګ له دې عالمه تنها خوښ یم     چې مدام لکه وحشی په صحرا خوښ یم

هو چې خشک طینت خال د سیم     لکه موج د قاره به دریا خوښ یم



چې شاړه ئې له لقمې ډوډې مګس شی     کله زه د هغه خوان په صلا خوښ یم

چې په شان د آفتاب نه ده کرم دویه     ستا په سر که په سایه د هما خوښ یم

چې په قید ئې د قفس کړم لکه زړکه     ترڅا هسې خندا زه په ژړا خوښ یم

که بیدار لکه تصویر له خوابه نه شو

په دا حال له خپله بخته **شیدا** خوښ یم

تیر د خپل آئین جلوه پیدا کړم     تاریکی د نور چرا غوئیه آسا کړم

که آسمان لکه شعله بوهغه پا کړم     په مدد د خار وحش قطع صحرا کړم

چې اثر ئې د بنا په خاطر نه به دم     د حباب غوندې به ورآن کور د دنیا کړم

مکدر ئې په غبار روشن خاطر شی     زه چې در لکه دیده د ایوان وا کړم

هیڅ خبر لکه نرګس په احوال نه یم     چې په څه چمن کښې ناست یم تماشا کړم

که په وضع لکه کوه تمام تمکین یم     ستا په غم کښې ګهه فریاد که ژړا کړم

تلې په لار نه شم د لار له سباد کیه     د شانې په شان که جمع هزار پا کړم

د یر ضرور موسم **شیدا** له قیل و قاله

د سوسن غوندې به ژبه سرمه سا کړم

څو کمان لری ناوک د کهکشان هم     تر هغه د فلک موخه یم نشان هم

څه علاج او کړم د ونځ رونه عالمه     وژلی ما لکه شعله آب حیوان هم

له غنچې سره تل غم د صبا بو یه     ما لیدلی دی دی جمع پریشان هم

ستا ګلګون تمام صیادان ګل و ګلزار لو     لکه ابر د بهار کړ وډ جولان هم

د مرهم په عوض ګل د مالګې را وړی     ګوندې روغ زخمی بو واشی بلالان هم

وینې سپینې شوې د خلقو له اوښکې | خپل اجزا دی له جیګره ګریزان هم
د خرمن په شان ئې کیږده بې سر پوښه | چه محفوظ د شی په خوان مور و مرغان هم
چه د ذرې ورپورې بند نه دې محبوسه | آزاده ناست ئې په کنج کښې د زندان هم
شیدا ورسته دیوان له هغه روه ته
چه لیږئې په صدا شی کوهستان هم

که ئې زمکه شی جوش فلک سپر هم | په لرزه به کړی ایلم د تعدو غر هم
تیغ په لاس لکه آفتاب په میدان راغلې | بنه رنګین لکه شفق زیر و زبر هم
چیرې نه چه ئې مشتاق کاله نظره | دا د تالب و دندان شیر و شکر هم
په بالین ے د ذره داغ شه بله شمع | بیکسئ که پرې نه ئې ښی نوحه ګر هم
دے نشته هیڅ لونی بې درد سره | هرګز نه دے د غزه سر په دردسر هم
لکه نرحامل د خپل شعاعی خط یم | په مانه کیږی احسنت د نامه بر هم
تعغ ئې د کود ورک لکه بیضه شی | څوک چه والوزوی سیم مایه د زر هم
چه ما ل ئې دې بزم بر هم او لید | صراحی په وینو اوڅپل ساغر هم
د دوران په انقلاب کښې شیدا ګوره
ماهی کوم صحبت د سمندر هم

چه لبریز لکه لاله په مینه ساغر کړم | مهیا کباب د خپل سوخته جګر کړم
ملک و مال دی تل باختهٔ د آزاده وو | دا بازی لکه ګوئې ځکه په خپل سر کړم
د فانوس په پرده بند لکه شعله شی | زه که برق د یار په لوری نامه بر کړم
په صورت عشق خوګے د حیا ماته | کله ونان ته د آفتاب ځه خو نظر کړم



دلجمعی غنچه سان دی له ګل چینه | پوشیده چه لکه عیب خپل هنر کړم
کله لوست شعاعی خط شی په کودلو | له آسمان مځکه د حرف زیر و زبر کړم
نو بېخه په بل د دښمن د باسم توره | په خپل تیغ د ځان خونریز لکه سحر کړم
شیدا نه مو م کړی له هم صحبته
که خپل ځان په سرو لنبو کښې سمندر کړم

د رخسار و ته د بو په رنګینی هم | یاسمن کوی د ګل همنشینی هم
و آئین ته د حیرانه آئینه شوه | تاچه هیر ے کړه له نازه خوبینی هم
بیا پیدا شو نوے شور په کوه و دشته | لیلائی کړے په ادا کښې شیرینی هم
د رخسار و ته ئې لاس نزدی د زلفے | تماشا د ے چمن کاګل چینی هم
د دوران په خوان صلا شوه هسے ورکه
چه صدانه کا شیدا کاسه چینی هم

آواره لکه آفتاب په بحر و بر یم | درته ځه وایم چه ځه سوخته اختر یم
مرصع آلات به ځه کړم په جوهرو | آراسته لکه مرآت په خاکستر یم
هیڅ خبر په سلیقه د پرواز نه شوم | لکه ګل په آشیانه کښې ریخته پر یم
زه په خیال د تورو زلفو آواره شوم | که آخته تورې شپې په دشت سر یم
کدورت مے د صفا په صیقل ورک شو | پیدا چاکه سینه خوښی لکه سحر یم
چه کچکول ورځنې پر زور رم په ګوهرو | د صدف په شان ګدا د هسے در یم
که شعله د سوزان اور ګرم روڼئ کا | په صحبت ئې میئن شوے سمندر یم
هر ګردش په جګر خون کړم شیدا ځکه | نن له خپله زړسینه سیر لکه ساغر یم

گرفتار دِ تا دَ زلفو په زنځیر یم ستا په در چه دَ حلقے په شان اسیر یم
دَ فانو په بالین خوک دَ بیکس سر بدی په بستر دَ خاؤرو پروت لکه تصویر یم
خکه مالکه بانړۀ په ستر کو واخست چه ویشتلے دَ خاص ترکش په تیر یم
خشك پهلو دَ اُفتاده کله ما پر لیښی په وفا کښے لکه نقش دَ حصیر یم
کاه دلتنگ کښے پریشان کښے باو دَری په هر آن لکه غنچه دَ گل زهیر یم
توکل ے نوری ورکه کړه په بیم کښے
لکه آب هسے په خُله کښے دَ شمشیر یم
چه له خپله سره تیر دَ کِلك په شان یم په طلب هله دے سنبکلی جانان یم
دا گومی ستا دَ چشمانو دَ نګاه د ه چه سوخته لکه دِ تا سیاه مژگان یم
چه خاطرے شو مسکن دَ دسترانو داته اوګوره یو نوے هندستان یم
دَ شانے په صد پاره جگر قسم کړم چه په غم کښے دِ تو زلفو پریشان یم
دَ خزان له ترسه گل ته کتے نهٔ شم په دا باغ کښے لکه بید هسے لرزان یم
که پروازے په هوا دے رها نهٔ شوم مطوق دَ هغه سرو خرامان یم
دَ غبار په شان لے بوُ دَ رم پروانهٔ کا دامنگیر دَ هسے شوخ گرم جولان یم
په هندی ادا لے اوکړے په ما چارے
زهٔ شیدا په زړهٔ ساده دَ روه افغان یم
هغه دم به لے تمام زخم بهم کړم کهٔ بسمل ته دے نمك دَ مخ مرهم کړم
دَ مژگان په شان ے خانے په نور لیمه کا چه گردن په تواضع دَ هرچا خم کړم
خپل وجود یم لکه شپه مکو ر کړے وعدم ته ئے آرزو دَ عیجنام کړم



نورے زړکے شی دَ هند په برسات کښے په ژړا چه ستر کے تر بے دمپدم کړم
څهٔ عجب لکه قطره چه دریاب نهٔ وی کهٔ په خپل زعم کښے ځان محیطیم کړم
دَ حباب په کور دے آه کا لیے مېلے چه بیان دَ جدائی غم وا لسم کړم
لکه ز لغے په بیاض باریک مضمون نه د م
زهٔ شیدا چه چیرے ساز مشکین قلم کړم
له حسرته دَ فلك خاطر پرخون کړم چه خپل جام لکه خورشید گلنا گون کړم
دَ صدا په شان لے بله صدا نشته چه دا یاد په زړهٔ فرهاد دَ بیستون کړم
چه په وصل کښے لے سرخورم لکه شمع په ادا ئے دَ شعلے گنړه مفتون کړم
خوښ یم زهٔ لکه سایه په زمین نوی تر هغه چه صرف بکار دَ نمرصابون کړم
نهٔ په روئی نهٔ په زاری نهٔ په زور کوځی وایه تللے عمرا وس په څه راستون کړم؛
په دانه پسے ے برق راځی و دام ته یاد په کومه توقع دَ زړکے یون کړم
شیدا خم کړم دَ خاطر لبریز په وینو
زهٔ چه بند لکه غنچه رنګین مضمون کړم
کله زهٔ سوے په برق په جواله یم چه په خپله شعله داغ لکه لاله یم
چه شیشه ے خالی نهٔ شوله آفتابه په دا بزم دَ فلك هم پیاله یم
تل ئے لب دی آزرده زماله نا مه په دا سوی طالع عین تب خاله یم
پکښے نشته سیه مست دَ هغو ستر کو گو زید لے په درست هند په بنګاله یم
دَ پیمار نمک ے سوز دَ معنی وی کله خوښی دَ دِے تکلیف په ازاله یم
چه دَ برق په شان لے وضع دوام نهٔ شی آواره په رم دَ هسے غزاله یم

ماتم کړه خپل بهلول له ښاد ما نیه
شیدا درست په شان د نی آه و ناله یم

چه مئین په کجلې سترګو ښهلا یم    مبتلا په یوه خندهٔ توره بلا یم
یوه قدم په زمکه نه لګی بې سنګه    مبتلا په هسې دور لکه آسیا یم
له احواله مې غافل دام د صیاد دی    چه ممنون د تنهائی لکه عنقا یم
چه مې نه شی قرار په یوه دشته    نه پوهیږم آواره د کوم صحرا یم
د ګلدا از موج مې دم په دم زیاتیږی    له ساحله مې ځان او ساته دریا یم
حواله مې په تیشه د فرهاد شنه ده    چه دا هسې ناهوار لکه خارا یم
ترهغه چه سر د جوشی د حنا وینم    خونی په طور د سمک دست و پا یم
آمیزش مې لکه آب د ګوهر نشته
شیدا کله له ساحل سره آشنا یم

زهٔ د عشق له غمه تول سیاپوش یم    په مانند د جرس هر دم پر خروش یم
په ګداز کښې مې درست ځان یوه قطره کړ    چه شبنم غوندې له ګله هم آغوش یم
هیڅ غوغا د بزم نه آورم په غوږ د    شیشه وار د بیهوشئ پنبه در ګوش یم
لکه سره با تڼۍ د شمع په محفل کښې    خود بخود په خپل ماتم کښې سیه پوش یم
تشنګی مې د څکر په میکده حی    د ساحل غوندې له عطشه دریانوش یم
شیدا زهٔ د خیال فانوس کړم سوز مرګما
چه قربان تر هر چراغ د کوم جوش یم
کهٔ د ذره په څېر جام غنچه وار موم    انتظار د ساقی نکړم باده نوش مم



هیڅ خبر لکه تصویر له ځانه نه یم    درته څهٔ وایم چه څوک یم یا څهٔ نو مم
زهٔ شیدا خپله هستئ لکه برق وسوم
و دیار ته د فنا په خندا درومم

چه مردم په ژړا سپین لکه حباب کړم    دیده او بنې کښې جوړې کښې دریاب کړم
ذره نه شوه د آفتاب په چشمه کده    د شبنم په دود به ځان قطره د آب کړم
تل په سنګ دروی او به د بالا دستو    چه نظر په فواره یا ئې په داب کړم
چه پرېوځی ئې هر دم د خوناب څاڅکی    عجب برق لکه سحاب په زړه کباب کړم
درویشی تورهیښی په خپل صورت وی    ستاله جوره چه په خپل خاطر عتاب کړم
څه راحت موم له دې سبزه کوشکه    ذهیر لوره باد باران ګرم آفتاب کړم
نادانی کړه غفلت د رهروانو    لکه طفل د ځانګو په تله کښې خواب کړم
تنګ چشمی نه ځی شیدا په زرداری
د غنچې مثال به زر درته حساب کړم

په نرمئ د سر دښمن د ځان مسا کړم    په سیلاب لکه حباب عمارت ساز کړم
پر و بال د تعطل په آشیان پرېږدم    لکه رنګ د رعنا ګل هسې پرواز کړم
خورشته وینم په ډوک د چرخ له جوره    چه په شان د ګوهر در د ګنبد باز کړم
که وئیل راته ضرور لکه نامه شی    په زبان د غیر خپل کلام آغاز کړم
د فرهاد په غم کښې هسې کوهسار ری    چه ګمان ئې په دامان د زیر انداز کړم
د کې سترګې په غبار لکه باد درومم    چه په طور د کوه نوتک وتاز کړم
مالید لې دې نشیب په هر فراز کښې    اعتماد به شیدا څهٔ رنګ په فراز کړم

## ن

منور پہ خپل مقدم کڑہ بام وصحن — دَ بہار سپیدہ دم کڑہ بام وصحن

ستر کے سینے پہ کاتۀ دَ مہرو ماشوے — جلوہ گاہ دَ خپل حرم کڑہ بام وصحن

یوہ ورخ لکہ آفتاب کڑہ نقاب لرے — شعلہ زن پہ کل عالم کڑہ بام وصحن

آزادہ لکہ حباب دَ تند سیلاب شہ — پہ یوہ زمان برہم کڑہ بام وصحن

چہ دِ دفع پیچ وتاب لکہ گرد بادشی — پہ افراط دَ تعجیل سم کڑہ بام وصحن

فرض کڑہ ما بلند آفتاب نے زوال مشتہ — تو آسمان ترمز کے کم کڑہ بام وصحن

شیدا دلے نے تکلیف پہ زلزلہ زدے
نۀ پہ خپلہ منہدم کڑہ بام وصحن

## و

چہ ہمت مے نۀ کاویرپہ ھسکولو — لکہ موج نۀ کڑمہ بیم لہ پریوتلو

سوال مے خوئی لہ دُرا فشانہ ابرنۀ دے — صدف دُردانہ خپلہ خُلہ کڑپہ غوبنتلو

دَ آفتاب پہ کمند نۀ ختیژم آسمان تہ — نۀ بہ دم بار لکہ شبنم پہ دوشی گلو

پہ کمال دَ جمعیت کبنے پریشان یم — پہ مثال یوہ دستہ یم دَ سنبلو

لطافت مے دَ مزاج تر غنچے تنگ کا — پہ چمن کبنے کۀ فریاد دوی دَ بلبلو

لہ آسمانہ بہ نۀ لحال راشی تر مزکے — کۀ مے کیبنودی سنگینی پیچیرے پہ تلو

دَ آزاد ولمن کلہ پہ خار نخنبلی — دَ نسیم غوندِ گذر کڑم پہ خنگلو

مروت کبنے پہ سرخائے دَ نشتر اکا — سرفرو بہ تواضع کڑم ترکا کلو

پہ داوقت کبنے کۀ شیدا دوا ژمہندوے — ثناخوان بہ وو ہر دم ستادَ و ثیلو



ما نے شوے لہ شرمہ داخولے پہ گلو — کۀ جاری دی بیاد باغ وے پہ گلو

انفعال نے خۀ نافع دوستا شوخی تہ — جلوہ گر شو دِ نامخ وے پہ گلو؟

لکہ شمع پہ کل سرپیکرہ بلبلہ ! — کۀ گلچین لائیٹی داخلے پہ گلو

پہ چمن کبنے بے تا سوزم لکہ شمع — چہ مے تل لگی دا ہ شعلے پہ گلو

پہ دالود مکو خزان کر عنان کرم — چہ ژبا شوہ دَ شبنم دے پہ گلو

خوریدۀ دے مسکن شیدا مغا دی
نۀ پہ شان دَ رنگ و بو مے پہ گلو

پہ غنچہ کبنے دَ قفس لکہ گل تنگ و — چہ دَ برق پہ شان روان پرید رنگ و

ترھغہ پیچھان نۀ وو شوردَ مینے — خوئے حسن آسودہ پہ خپل فرنگ و

پہ شفق نے دَ حنا آتش زنی کڑہ — ھغہ شوخ لکہ آفتاب نگار ین چنگ و

سنجیدہ نے کڑ تمکین دَ خپلے وضع — بےستون نے پہ میزان کبنے تۀ پاسنگ و

لکہ شمع دَ جولان پہ محفل گاہ کبنے — دَ گرمئی پہ شعلہ بوز دِ تا سرنگ و

تا چہ بزم کڑو روشن حُما آفتابہ ! — پہ داشپہ دَ صبا ستر کہ شب آھنگ و

چہ وصال دِ دوسوزان ترجلا بیٹی — ستا جمال لکہ شعلہ زیرۀ مے پتنگ و

ستا دَ غم لپسے نے ھسے بےتابی وَرہ — چہ پیدا دَ آئینے پہ خاطو زنگ و

اوس نے پل پہ مروایر ولشتہ عالمہ ؛
آوارہ شیدا دَ خۀ دُو نیمے ملنگ و

ستا مژگان ھسے لیدۀ شی چشمانو — لکہ او نکی ناوک پہ آھوا نو

ترمژگان مے گوھر صاف دے کہ انصاف وی — ولے نشتہ بصارت دَ جوھریا نو

دَ سیلاب موج په بند دَ گرداب کیږي — په نومڅي کوم تسخیر دَ تندخویانو
دَ صباح حرج غنچه پریشانه گل کا — زنهار مه کوه غرض په تنگدلانو
دَ ژوند یو غم ، بنا دی عارا معلومه شول — بیسکلي کوم په شماره دَ مردگانو
په عمیق نظر شعله کوره دَ شمع — دمپدم کیږي پستي دَ سرکشانو
رنگیني لے دَ اشعار ترحنا زیب کا
دَ شیدا دیوان په لاس واخلئ خوبانو

دَ بور رحل ته مے رلدار راځي په وروورو — که چمن ته نو بهار راځي په ورو، ورو
وار په وار لے التفات دَ سترگو وینم — ته به وائے چه بیمار راځي په ورو، ورو
تو بلا دَ بلا بیم کشنده تر وی — دَ خونریزه مے خونخوار راځي په ورو، ورو
ځکه زر که دَ قهقهه په خندا اشنه شو — چه په نبکائ غوش فتار راځي په ورو، ورو
جدائي مگر فرهاد پر یوست له برمه — چه فریاد لے دَ کهسار راځي په ورو، ورو
نو تمکین لا اندے تاب دَ گلگون ورک شو — هغه ترک شیرین کار راځي په ورو، ورو
شیدا مه کوه کلام بے تامله
هر طوطي په بنه گفتار راځي په ورو، ورو

بناگوش لے هاله ساز کړ وصورت کړو — چه مخلوط شو په رنگ آب دَ مرغلرو
نمایان لے په دا وقت شیرین لبان دی — که لب یو لے تنگ دهان دے په شکرو
خاص وعام په کار کبنے تن ورکا هغه ته — چه دَ سر وِ په شان لاس لے وی اَزغرو
بلندان دَ دُنیا پست دی که لے وینے — نکره هسک له مزکے سر لوړ وکړو
نوم هاله دَ توکل لکه گل آ خله — که آشیان کړو ورته ساز خپلو وزرو



دَ حباب په دود لے دلق له شرمه آب شي — چه نظر کا په آفعال دَ قلندرو
دَ هرکس چه خواب مزرکا شیدا بویه
لکه بخت همیشه بیدار دَ بختورو

کره هراس دَ تیغ دَ تیر له همنشینو — دوا ړه سترگے زخمي کړي دی قوینو
په گوشه کے دَ کبان وَصل آفت دے — ناوکي گوره دے خلوت گزینو
دَ نیام په شان لے تیغ پوسیده داوړه — اَلامان دِ تاله دے تنگو آستینو
دوا ړه کسوځ په رنگ لعل یاقوت کړه — لکه غړ دَ بدخشان ژرا ده په وینو
په رخسار لے نن قطره دَ عرق وینم — که لے برق شو دَ خرمن له دانه چینو
وی مدام په شان دَ شام لکه تو رسوی — چه سوخته شول په نکاه دَ ماه جبینو
لسختي لے آفت زیات دَ نزاکت دے — یے په طور دَ مینا له دِل سنگینو
چه په کنج لے مدام ماروی لکه شمع
اور لے وُ لکه شیدا په سرو و سپینو

دَ شبنم دانه که تخم شي دَ گلو — زړه به سورچه ډیدن نه شي دَ بلبلو
چه لے نشته لکه گل بنه رخسار ونه — څوک به خه کا تورے زلفے دَ سنبلو
په څه شان درته بیان سوے ظالم کړم — لکه نرخه جبین دے دَ دا غلو
معطل په عارضه دَ شام غریب دے — که ے زړه په حلقه بند شو دَ کاکلو
دَ آسمان په شان لے تیز دَ فتنو تیغ کړی — صبح وشام کړزی شبکاره په سر منگلو
دَ دریاب له سر دجوشي دَ حباب زړه چوی
شیدا قطع دَ اُمید بویه له خپلو



لکه برق چه کوم اوکوری ناګاه    سره لمبه شي په هغه لوری ناګاه
ستا د زلفو هیبت باد په تیښته روان کا    د ښامار په دود چه اوښوری ناګاه
لکه شق د قلم ذره د شیدا اوچاؤد
چه ښکاره شول ستا د خط توری ناګاه

کوم نان لکه آفتاب مه‌رېږده بې آبه    چه سینه دِ د میلمه نۀ شی کبابه
زنګ دِ تا په آئینه د صیقل کاږ کا    اے د بخت په روښنی لکه مهتابه
حرکت دِ د نفس په نری باد دے    همیشه لکه ورق پاؤدر رکابه
انهدام یې د سیلاب په صدمه نۀ شی    چه خالی دِ خپله خونه کړه حبابه
د ګدا په راحت کله شاهان پوهېږي    ستر ګے کله وی خبر د شپې له خوابه
د ناقص په قیل وقال د زړه سیاهی ځی    د هلک په شیبه حرف ځی له کتابه
کۀ خجل نکړه ژړا د شیدا ولے
څوک لے ماڼے په شبنم شوے بے آفتابه

کۀ حجاب له مخه اړے کا محبوبه    په آسمان کښې به سپوږمۍ کاندِ ځان محجوبه
د نرګس د سترګے ګل کله معیوب دے    سیم وزر کاندی زښتی د هر چا خوبه
چه طغیان اوکړه دریاب زما د اوښو    سفینه ځما د زړه شو پکښې ډوبه
په چشمه به دِ آفتاب سو سبز نۀ شی    د شبنم دانه یې ولے کړه جذبه
زمانه د شیدا هسے ځان ځانی شوه
چه بلاګنان درو می له ایوبه



دِ تا لطف ے کباب کا بے غضبه    لکه برق په خندا راشی میګون لبه
احاطه د نوی خط د ښکلیه مخه!    کۀ په خُله کړه اژدها ماه نخشبه
چه یې جم له ژړا سره خندا اکړه    څوک خبر دی بے مینا له دے مشربه
شیدا طول د امل اوکوه حیات دے
فسانه د درازۍ نۀ بویه له شبه

غۀ بیان د هغه ناز کوم د چا ته    لکه ګل د شمع نۀ خاندی صباته
کړه نۀ خونه مشاطے د زلفو ماته    پریشانی یې شوه په دا توحده زیاته
د منیں له دِله زنګ د نګار اوزی    هیڅ نسبت د مینې مۀ کوه حناته
کله پریږدی د مرآت خودنما ښیه    چه یې کښېږدی یو نفس د خودآرا ته
چه په طاق د نسیان تل د زړه مینا پرږی    غۀ امید کوے د هسے دلربا ته
زړۀ له ما هسے رخسار په جلوه یووړ    چه ساده وانۍ د باغ ګل رعنا ته
حقارت د افتاده کړه ګردن کشه    داغ غزلمن په عاشق و خاک پا ته
په صورت یې نکی اوړه خپله تنه    چه ظالم ځی لکه برق تحت الثری ته
بیماری به د نرګس کا شیدا ورکه
کۀ یې راشی د نګاه دار الشفا ته

آماده په هسے شان یم د سوختن ته    چه شی برق د صورت برلېښ زما خرمن ته
کار پخپله تردستی لکه حباب کړه    چه محتاج د خیاط نۀ شے پیرهن ته
حوصله خوشه واروی تل لبریزه    کۀ پرواز نکړم هرګز دانه چیدن ته
زبانلان د هر زبان په هسے شان وی    چه جواب په ظرافت کا وسوسن ته

نامور به په جهان شي تر شیرینې
کۀ تیشه ورکړے یو دم وخپل کوهکن ته

په ګلګون سرشک ے رنګ لکه غنچه کړه
هله جوړشوم دَ ګریوان و دریدن ته

دَ صبا په سعی ګل دَ ما ګے خندَه شي
کله جوړدے ترش جبین و شګفتن ته

خو په بخره ے ذرا لکه شبنم دِی
چه شیدا ورشي بے تا چیرے ګلشن ته

اے دَ خپل ناز و ادا په باده مسته
تا دَ ذرهٔ شیشه پرے نهٔ شوه بے شکسته

څو دِ نهٔ یم دَ شعلے په شان وژلے
خلاص به نکړے خپل دامن زما له دسته

هیڅ خبر لکه تصویر له ځانه نهٔ د ه
دا فرقه په یوه آن کښې نیست هسته

پریشانه شوے دِ تا مشکینې زلفې
کۀ عالم شو دَ ختن بے بند و بسته

دَ ماهي په شان تپان خسته نخچیر شي
لا و تلے نهٔ وي تیر دِ تا له شسته

دَ خپل ځانه نګران لیل و نهار ے
په مثال دَ برهمن صورت پرسته

له شیدا دَ هر سحر په زره غارمۀ شي
دِ تا مخ ورته ستائي مدام له قسته

څهٔ حاصل دَ ممسکانو له دو لته
دَ اشعار بحر وي تل بے ثروته

خود بیني کله شیوه دَ صاف طینت ده
سترګے نهٔ دي هیڅ آګاه له ځان رویته

سر ګردان کاندی ګرداب خلاف دَ بحر
پیر وتماده دَ کلان بے مضرته

دَ زوال علاج هرګز نهٔ شي په زور
آفتاب او ګوره چه پریوت له رفعته

دَ مرآت خوندِ جوهر په اېرو ورکا
کله فعل دَ صاف دل وي بے حکمته

چیرے نه چه دار محروم په میدان پریږدے
کۀ یو سر په تن لرے بلند همته



په ذلت کښې ے عزت دَ ارتفاع دے
کۀ ے څوک لکه غبار وهي په لته

هیشه وی نرم چوب غذا دَ کرم
شیدا مۀ شه مرد خالي له سیاسته

په نها دَ هر سري کښې هلے نشته
دَ زانو په آئینه کښې جوهر نشته

کله جم دَ توبې آزاده کاندي
په سباخونو کښې دَ سرو ثمر نشته

دَ بنا په تخریب زړهٔ دَ سیلاب سوځي
دَ ظالم په زړهٔ دَ رحم اثر نشته

دَ جنون ترڅ ولیدهٔ ویښتو ځار کړه
کۀ دَ بید په شان ے تاج و افسر نشته

په خوږه ژبه مرغوب لکه طوطي شه
ګۀ قدرت دِ په عطا دَ شکر نشته

قدمبوس به لے افسر دَ قیصر او کا
چه سیلان لے لکه آب دَ ګوهر نشته

دَ همت علو دَ غیر احسان څهٔ کا
دَ بنر و سایه په سترګه دَ نمر نشته

شیدا آب لے دَ جودت هسے زنګ تیر دے
چه تمکین ته ے دَ طبع لنګر نشته

هیڅ نقصان دَ ساده حسن جمال نشته
دَ آفتاب په رخسار هم خط و خال نشته

چه بدل لے په کچکول دَ مهتاب خوان کړ
اعتماد دَ زمانے په کمال نشته

تمنبلو لے زمانے په کوم سبب شیم
لکه ژبه خود زما پرو مبال نشته

دَ کجل لکۀ لے کوزشوځے سترګے
په دا هسے خوبي شلخ دَ غزال نشته

هره لارے اژدها دے جهان نغري
دَ بعد حبل ته لے دَ هرچا مجال نشته

چه کوره لے دَ کوکب دَ کاروا نکره
ولے نهٔ وائے ناخن دَ هلال نشته

افروخته وي پکښې تل دَ حسن شمع
دَ خاطر غوندے فانوس دَ خیال نشته

شیدا کوره هر طرف ګلګونی اوښے
هیڅ خنده په دا بهار کښے امسال نشته

پاتے نهٔ شوه په عالم کښے سرشته / اوس په تخم د مرغانو شي کُشته
د کوهسار دانه په لاس د شواظ راغله / د جوار په شان به زړښی برشته

د سختئ په پیچ و تاب د مرو دنړۍ ځی
چه په دوک شي اېښنه ځان کاندی رشته

د داړه لب دی په ګفتار کړهٔ تخدیر ته / کهٔ طوطی راغے د قند مکور ته
د حیرت جوهر نصیب د تیرهٔ نرهٔ وی / د فولاد بیضه کجا آئینه چرته
په عطائے فی الحال وائکه صدف کړه / لاس چه اونیسی محتاج دی تا ودته
وکاکل ته دی کافی د رخسار ګل دے / حاجت نهٔ لری د عطر و عنبر ته
نهٔ کاشوم دیده واړه سو بزرګه / برابر کوری مرأت و سکندر ته
آفرین د همغه سر په ثریا نیه / چه فرونشه دستار و یا افسر ته

د سیماب غوندے کړیکا له کړمید
خهٔ رنګ راشی هغه شوخ د شیدا بر ته

د جهان د کرم رو دستا ولور ته / لکه شمع نامه او سپارم و اور ته
په داشان به خالی لاس ورځے ددومها / تهی دست لکه حباب راغلے کور ته
سنهٔ مردان د بل تکار تمام معروف وی / بے ګفتن لکه ګنج درومی و کور ته
هر ساعت وی تر دو رنګ له خجالته / داشه اوکړه د سترګو سپین د تور ته
له تاڅخه ځی جام نسکور لکه حباب ورځم / چه راغلے یم ودے دریائے شور ته



ګوره ته د خپل صورت په تزئین راغلے / لکه تاند کشیده ودے انځور ته
د زړهٔ دوی عقدے په آسیا حل شوی / په یوه عقدهٔ نے ګوره ناقص مو ته

د شیدا نازک مضمون کودنه ته لولے
د هلال رویت دی او سپلرهٔ شبکور ته

ماچه شا کړه د دُنیا د خان و مان ته / ځهٔ حاجت لرم د نور سمیوسامان ته
شګفته به دی جبین وی قاتل بے چینه / حواله کړه ما خوګونه خاقان ته
خوغوارې د خپل خیکو په ویحت کړم / هرګز نهٔ راځی مګس حلواخوان ته
په رضائے یوه دم ایست په چمن نهٔ وی / نیټهٔ چه لاس واچا د مضار د ګلستان ته
ستاد زلفو په لور نه رو نه خرام کاندی / کهٔ د ګُرُوم قافله د روحی هندوستان ته
ستا چشمان به څهٔ نګاه کا پښخا کسارو / چه له کبره و باټره ګوری آسمان ته

مبارکه شه په تا د دُنیا خونه
آواره شیدا روان دے بیابان ته

بریږه راشه د بهار تازه بسنته / تا نشاط راوړو هر دشت و هر چمن ته
لباس هسے د عالم زعفرانی شو / چه هر ګل په خندا راغے د ګلشن ته
لکه مرغ د تنګ قفس شیدا ببیله / په بیضه کښے کا هوس و پریدن ته
لکه نبو چه د غروب په هنګام زرد شی / کړه نظر په دا لباس کښے ګلبدن ته
ګلدسته به په دستار د هر سیاه زډ دی / صحرا اچوی ګلونه خپل دامن ته
د بلبل خاطر مائل په رنګین ګل دے / کهٔ په جام راغله مینا باده ریختن ته
له خجلته ئے باران د عرق اوری / برقا چه اوکوری د ګل رنګین منته

نالوان ددے بهار په شان د ګلو　　　هیڅ هغلج د عطرنه دی پیرهن ته
مغنی کادو بالا نشه د مټو　　　چه مستان کښیني د بزم آراستن ته

شیدا ولے ئے صدف د محیط بولے
غوږ نیولے دے کو هر ډ تا سخن ته

چه تکلیف ئے نه وی هیڅ د تیغ چوګان ته　　　لکه کوئے بے تنه سر ودرم د میدان ته
په سوخته سینه لے مانه کړه بلبله　　　چه غنچه راوړی بیضه د ګل آشیان ته
چه دانه ئے لکه ګل په خرمن نشته　　　د آسیا د پاره ځه وا ئیم آسمان ته
کشائش کاندی خاطر د هرچا جمع　　　آشفته زلفے په مخ راشه پریشان ته
ګلرخان له آئینے روګردان نه دی　　　ولے نه کوے نظر د خپل حیران ته
چه لے سیر په تماشا نه شے تول عمر　　　د آدموستی کے پیدا کړه بیابان ته

شیدا تل وی ګلنار کوی په خونین اوښو
زه چه کوم لکه صبح چاک ګریوان ته

همیے زودا وکړو سودا په رسوا دلته　　　چه پر شور لکه بازار شو صحرا دلته
تغافل ئے د نګاه کشنده تر دے　　　په هدف لګی هر غشے خطا دلته
له شوخئ ئے د لبانو عجب نه دی　　　که له دیره سرمه آب شو صهبا دلته
ځی په بیعه دا وبوله دیره آ به　　　هرګز نشته د ګوهر شناسا دلته
که ئے اووینی کبکان سختی د طبع　　　په کهسار پورے به اوکلخندا دلته

عاقبت به تورے خاوړے د میدان شی
تل به کله وی جولان د شیدا دلته



نشته هیڅ په عشق بازئ کښې د چا کښه　　　سو به یو نه سی ددے سودا له هغه
چه لا تنه دایرے په تن پیدا شی　　　ځان هله بوله ملنګ لکه سکرونه
که شربت د نیلوفر راشی په جوئے کښے　　　روغ به کله شی نرګس د باغبے د تبه
نه ئے درونه په شان د ګلو ګل اندامه　　　د غنچے په طور خوب کوه بے کښه
تا په وے د برسات جهند ه برق دے　　　چه را غلے په شوخی وله نو نپکهته

کوره زور د افتاده چه تور وخاوړ رو
شیدا غر په تندی واخست لکه کته

څه اضون دے په ما اوکړو پریزاده　　　چه یو دم نه یم خالی ډ تا له یاده
زړه ئے رک لکه سپند دے شعله خوبه　　　چه د زړه په سواد اوکوم څو فریاده
بهانه ډ د غرض مګر شانه کړه　　　تل ئے لاس ور وړے د زلفو ته شمشاده
چه آواز د تیشے په کهسار نشته　　　د شیرین په طلب لاړے فرهاده
په آسباب کښے ئے زړه بند په آسباب نه دے　　　د چمن په قید سروه ده آزاده
نتیجه ئے د دیدن عظیم آفت دے　　　لکه برق شعله په لاس اوزی بیداده
چه په هر منزل کښے سرخوری لکه شمع　　　د هغه رهرو څه نفع ده له زاده
مهیا در ته قفس د شلخ ګل کړه　　　که څه رحم په بلبل کوے صیاده
په سختئ کله امساک د دولت کیږی　　　جو هر نه ځی په هیڅ وخت کښے له فولاده

همیشه ئے پیچ و تاب لکه ګوهر دے
چه شیدا ا غے تر دے حیرت آباده

چه لنبو ته د تنور په شان پیدا ده　　　که پوهیږے دا سوخته سینه زما ده

لکه اُبو په هیڅ وخت نهٔ شوې نمه — هر ساعت زما په سترګو کښې ژړا دهٔ

خوبونه په شور لکه ساحل دَ سیلاب نهٔ یم — چې مې ایښې په عزت دَ کور بنا دهٔ

په سپین مخ ئې دَ عرق دانه لیدهٔ شي — دَ سحر په وخت کهٔ سترګه ګهبا دهٔ

فیض لے نهٔ شي دَ همت په تنګه ستي

خودلید لے فواره شاه و ګدا دهٔ

خندِ زده لکه نرګس زماله درد دهٔ — پوشیدهٔ ے په غنچه کړه ګونه زرد دهٔ

په رښتیا وي هر فریاد دَ سوخته ګانو — دَ سپند ناله له سوزهٔ په تجرد دهٔ

اوس دَ ښکلو په طلب کښے صادق لید شي — دَ قلم غونډے بے سره رهٔ نورد دهٔ

دَ ادبو په شان روان په هسے لار شه — چه دا سپینه لمن اوساته له ګرد دهٔ

په کښے عکس دَ خپل جاه نمایت وینی — آئینه چه نن په لاس دَ سکندر دهٔ

دَ دوران په سردجوشئ کښے عجب نهٔ دے — کهٔ لاله غونډے لنبه شی دَ اور سرد دهٔ

شیدا زهٔ ئے منتخب دَ پښتو بولم

کهٔ دیوان دِ مرتب دے په څو فرد دهٔ

کوے چا په خپل هنر خود نوازي دهٔ — په محمود باندے موقوفه ایازي دهٔ

دَ دنیا نعمت ذلیل کړے لکه زر ے — په خروج دِله میوے سرفرازي دهٔ

نهٔ په سل مرګه یم مړ په ژوندانه کښے — هر نفس ے لکه شمع سربازي دهٔ

دَ هدف په شان مے آه تر څلے اوښوت — کهٔ زده کوے دِ په ما تیراندازي دهٔ

په ژوندون به لکه شمع دل سوز نشم — چه تر مرګ پورے زما جانګدازي دهٔ

راست روئی مے لکه رُخ نهٔ ده پکار ایښے — کهٔ فلک دا سوره کړے کج بازي دهٔ



دَ پتنګ غونډے تل په ما غضب دے — چا ئے کړے شعله خوته غمازي دهٔ

راست ګویان لکه مرات شیدا حیران دي

په هر لور دَ زمانے سخن سازي دهٔ

دا دَ خط جلوه په مخ دَ دلستان دَ — حاشیه کهٔ په نسخه دَ ګلستان دهٔ

تلون ئے دَ مزاج دے شام و صبح — خاص و عام ته ښکاره وضع دَ آسمان دهٔ

کشائش دِ په ګردش نهٔ شي آسمانه — دَ پروین خوشه لا بنده هنر شان دهٔ

دَ حیوان چشمه ئے بولم انسان نهٔ دے — کهٔ جرعه ئے دَ ساغر څښلے نادان دهٔ

دردمندان شعله ئے برق په دا سا کړه — دَ خرمن مایه ساتلے علم دان دهٔ

سیاهي ئے دَ چشمالو په شوخئ کښے — دَ غزال سایه پر تر په سپین میدان دهٔ

په میدان دَ دریاب ګوئے شیدا اجب ور دي

دَ بازي کمال خوبي دَ کوم انسان دهٔ

دَ ماهي غونډے سینه په خارا فګاره — هیڅ خبر نهٔ یم له ګل وله ګلزاره

تپیدهٔ ے دَ سمك بسمل بے تیغه — دَ خونریز توره به څهٔ کړے آمداره

لکه نخل دَ بانړهٔ په جویبار خشک یم — ما او نهٔ لید برګ و بار له نوبهاره

سرے هسے په صحبت دَ تن زهیرو — هرګز ورته را لږ بیا له داره

سترګے پورته په آدا زما آفتاب کړے — کهٔ فتنه شوه دَ سحر په وخت بیداره

همیشه سیاه لباس چشمے دَ اوبنو — دَ فرهاد ماتم به څوک کا بے کهساره

په ما باندې سلیمان لکه مور نشته — په یوه دانه قانع یم له خرواره

اوس ګردش بویه په کام دَ شیدا چرخ — هرګز نهٔ ګرځي آسیا دَ چا بے واره

